بسم الله الرحمن الرحيم

## کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | لیلی دښته، سترګو لیدلی حال |
| لیکوال | :: | محمد اجان یار |
| خپروونکی | :: | د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور |
| چاپ وار | :: | لومړی |
| چاپ نېټه | :: | 1383ل/2004م |
| چاپ شمېر | :: | 1000 ټوکه |
| کمپوزر | :: | شفق |

ګرانو لوستونکیو !

زمـوږ د ګـران هېـواد تېـرې نـاخوالې او ځینـې ژونـدۍ کیـسګې راتـه رډ رډ ګـوري. بـاور وکـړئ، چېرې د لیکـوالۍ پخـوا نـه وم ورغلـی. یـوازې بـه مـې شـعرونه کلـه ناکلـه لیکـل، خـو د کلـه نـه چـې دا پېښځـه ویـشت کلنـه غمیـزه پیـل شـوې ده، زه بـې دې تـه اړ ایـستی یـم، چـې د خپـل هېـواد او ولـس د پېښو خام انځور په کاغذ اوباسم.

د لیکـوالۍ لـوړ هنـري انـداز نـه لـري، خـو صـرف یـوازې ستاسـې نظـر د لیلـی دښـتې تـه اړوم. کومې زیاتې خبرې پکې نشته دی، د شمس الدین اکا د سترګو لیدلی حال دی.

ستاسې د وطن د لیلی په دښته کې.

**محمدا جان یار**

کولن، جرمني

حاجي ګل تازه له وطن نه راغلی و. ستړي مشي مې ورسره وکړه، د کلي نور خلک هم د هغه ستړي مشي ته راغلي وو. ماته يې په غوږ کې وويل: دا خلک چې ولاړل، بيا به درسره خبرې وکړم. وړاندې د کټ لنګې ته مې تکيه وکړه، ناستو کسانو خپلو کې ډېر څه سره ويل. ماته تمه پيدا شوه، زړه کې مې له ځان سره ويل: لکه چې حاجي ګل نوې کيسې له ځان سره راوړي دي. چا راته د چای پياله ونيوه او يو غړپ مې ترې وکړو. مخکې راغلي کسان وار په وار پسې وتل، ترڅو چې ټول ولاړل. هغه له دروازې نه په منډه راستون شو، په دوه ګامه زما خواته راورسېد، لومړی مې ترې پوښتنې د هغه د کورنۍ د غړو وکړه. خوله يې ونيوه، د روغ ناروغ سم ځواب يې رانه کړ.

ما وې: ځنګه غړه کنده شوې خبره کوه، هو رښتيا تا ويلې دا خلک ولاړ شي بيا به درته يو څه خبرې وکړم. هغه څه خبرې دي؟

هغه لومړی سوړ اسوېلی ويوست، لږ غلی شو بيا يې داسې وويل:

د ويلو کيسې نه دي. زه خوا ته ورنږدې شوم، ما وې اوس به بيا څوک راشي، هله ماته کيسه کوه. ويلې قسم دې ماته چې چا دغه کيسه کوله، د سر ويښتان مې نېغ ودرېدل ده وی. جلال اباد کې دا يوه اوونۍ مخکې زمونږ د يوه خپلوان دوکان مخې ته د سپينې ږيرې يو سړی چوپ ناست و. زه په ډېر ادب سره د هغه خواته ورنږدې شوم، ما وې کاکا جانه د کوم ځای يې؟.

هغه يو لاس په امسا ايښی و، ويلې بچيه زه د مومندرې يم، خو په مزارشريف کې مې مځکه او کور شته دی. د سپين ږيرې زړه ډک و، سم راته راګويا نه شو. زه ورنږدې شوم، ورته ومې ويل: کاکا جانه که تکليف درته نه وي، ټوله کيسه راته وکړه. ده ويلې وړوکی وم، مور مې پخوا له ځان سره بيولی وم، پلار مې څو کاله پخوا ترکستان ته تللی و، زه او مور مې پسې وروسته ولاړه.

وزير محمد ګل خان مومند دې خدای وبښي، ډېر پښتانه يې قطغن زمين، مزار شريف، کندز، بغلان او پلخمري ته انتقال کړي وو. شبرخان ناشر، نازکمير دوی کندز اباد کړی و، هغوی هم پښتانه ورانتقال کړي وو. شاړې مځکې ابادې شوې وې، پلار مې دې الله په جنت کړي، ويل به يې لومړی دا ټول کندز شاړ او ځنګل زار و. د وخت په تېرېدو سره ورته خلک راتلل او شاړې مځکې يې ابادولې. تاجکو، ازبکو او لږه کيو ترکمنو هم پکې ځای پرځای کلي ودان کړل. لارې او سړکونه ويستلشول، د خلکو تګ راتګ زيات شو.

بچـی مـور مـې راتــه ویلــې ایلــه د دري کــالو بــه وې، چــې د (لتــه بنــد ) پــه لاره پــه یــوه زوړ واګـون ګـاډي کـې پلخمـري تـه پـه دوه شـپو او دوه ورځـو کـې ورسـېدو او دا یـې هـم ویـل، چـې پـه زیاتـه لاره بانـدې مـې پـه خـره وړی وې. د هغـې وخـت سړکونه خـو د نـن پـه شـان نـه وو، دلتـه بنـد او د واب مـیخ زریـن لارې خـو پـه غرونـو کـې پـه کړپـو او ګړنګونـو کـې تللـې وې. پـه زیـاتو ځـایونو کـې بـه خلـک لـه موټر نـه کوزېـدل او پخپلـو پـښو بـه تلـل. پـه ځـو شـپو ورځـو کـې بـه قطغـن تـه واوښـتل. پـه دغـو مځکـو کـې تـګ راتـګ ځکـه سـخت و، چـې شـرمخانو او لېوانـو بـه خلـک داړل. د خلکـو تـګ راتـګ ډلـه ییـز و، ځـو تنـه بـه سـره یوځـای کېـدل بیـا بـه لـه یـوې سـیمې نـه بلـې سـیمګې تـه تلـل. وروسـته بیـا یـو نـیم ګـاډی (مـوټر) پیـدا شـو. سړکونه ووهـل شـول، د خلکـو لېږدېدنـه لـږه اسـانه شـوه. بچـی زمـا لـږ لـږ یـاد یږي، چـې لـومړی مـوږه پـه پلخمـري کـې اوسـېدلو. زه چـې کلـه رابـوټکی شـوم، پـه ښـو بـدو وپوهېـدم، پـلار مـې پـه حـق ورسـېد. هغـه مـې مومنـد درې تـه راوړ، ځـه مـوده پـس مـې مـور مړه شـوه، هغـه مـې هـم خپلـې هدیرې تـه راوړه. ځـه پیسـې مـې چـې درلـودې، د مـور و پـلار پـه مړینـه کـې ولګېـدې. زه لـه یـوه ورور او دوه خوېنـدو سـره پـاتې شـوم. لـه بغـلان نـه مـو کنـدز تـه د تلـو نیـت وکـړ. پخپلـو پـښو تـر کنـدوزه ولاړو. پـه دوه ورځـو کـې تـر کنـدوزه ورسـېدو. مـوږ پـه کنـدوز کـې پـوره یـو کـال تېـر کـړ. د خلکـو سـره بـه مـې د شـاړو مځکـو پـه ابـادولو کـې کـار کـاوه. هغـوی بـه غلـه دانـه راکولـه، یـو کـال وروسـته بیـا مزارشـریف تـه کـډه شـوو. د منـې شـپې ورځـې وې، هـوا مـخ پـه یخېـدو وه، هلتـه مـو یوځـای او بـل ځـای شـپې ورځـې تېرولـې، ترڅـو چـې یـوه وطنـدار لـه ځـان سـره شــولګرې تــه بوتلــو او هلتــه مــو واړول. پــه دغــه وخــت کــې مــې ورور زلمــوټی شــوی و، خوېندې مې لا وړې وې.

څو کالـه مـې لـه یـوه اربـاب سـره کـار کـاوه. ورور مـې هـم راسـره پـه کـار کـې بوخـت و. هلتـه د نـاقلینو لـوی کلـی ابـاد شـوی و. شـاوخوا نـور د پـښتنو کلـي ابـاد شـوي وو. هـر چـا ځانتـه مځکـه اخیـستې وه، باغونـه جـوړ شـوي وو، هـره خـوا ښـه شـنه ښـکارېده. پـه درې کـالو کـې مـې یـو ځـه پیسـې پیـدا کـړې، مځکـه مـې واخیـستله، مـا هـم ځانتـه کـلا جـوړه کـړه. د کـلا مخـې تـه مـې بـاغ او باغچـه جـوړه کـړه. ځانتـه مـې واده وکـړ. ورور تـه مـې هـم کـوژده وکـړه. لـږه مـوده پـس مـې ځـو اسـتحقاقه ځمکـه نـوره واخیـستله پـوره غلـه دانـه بـه کېدلـه. مالـداري مـې ډېـره وه.

پــه دې وخــت کــې یــې رانــه اوبــه وغوښــتې ویلــې: بچیــه کــه تکلیــف کېــږي نــه، یــو کټــوری اوبه خو راکړه.

ما ورته يو جام اوبه راوړې، هغه په يوه ساه اوبه وڅښلې. جام مې ترې ونيوه، ما وې کاکا جانه ستا نوم څه دی؟

ده ويل خاورې شمس الدين.

ښه کاکا کيسه کوه.

ويلې: خدای ښه مالداري او زمينداري راکړه. ورور ته مې داسې واده وکړ، چې دوه شپې او ورځې مجلسونه کېدل، خوېندې مې هم واده شوې، الله رابانديې ښې شپې ورځې راوستې. هغه لړ غلی شو، بيا يې وويل خو اوس.. ! زر زر يې سترګې ورپولې، په ړيره يې لاس تېر کړ، په دغه حالت يې زما شک پيدا شو، ما وې کاکاجانه ولې؟ اوس څنګه؟ هغه بيا خپل سر واړاوه راواړاوه، وې ويل بچيه ورک يې کړه، په اوس خبرو کې څه خوند نشته دی.

په دې وخت کې دوکاندار يوه پياله چای ورته راوړ، ما ورته د چايو پياله ورکړه، هن کاکا جانه دا چای وڅښه، خو اصلي کيسه به راته خامخا کوې.

هغه دوه درې ګوټه له پيالې نه وکړل، خپل څادر يې د کوناټې نه لاندې کړو، وې ويل:

په اوسنيو کيسو کې ټولې بدبختيګانې دي، ښه څه پکې نشته، په غېر له بدو پېښو نه. غوړ ونيسه اوس به درته يو ازې خپله کيسه او د سترګو ليدلی حال وو ايم.

زما درته غوړ دی کاکاجانه، کيسه کوه.

بچيه بلا دې واخلم ربښتيا ده، چې د ظاهر شاه باچاهي ډېره ښه وه، ارامه ارامي وه، هر چا ښه هوسا ژوند درلود، دا خبرې نه وې، له داودخانی نه نيولې ان ترننه پورې يوه ورځ له بلې نه بدتره ده، جګړې دي، مرګونه دي، د کليو او ښارونو ورانول دي، دا څه بدحال دی. موږ خو له پلار نيکه نه مسلمانان يوو، په همغه پخواني اسلام باندې مو ښه ټينګه عقيده ده. اوس خو هرڅه بدل شول، د طالبانو په وخت کې خو بيخي بل ډول کارونه وشول، ړيره لنډه ده، ړيره اوږده کړه. د اسلام دين يې په ړيره پورې غوټه کړو. اخر يې داسې کانې وکړې، چې د افغانانو تاريخ او فرهنګ يې په سين لاهو کړو د ټولې دنيا پام يې ځانته راواړااوه، نتيجه يې دا شوه، چې امريکا او انګرېزان يې راوخوځول او زموږ ملک يې پرې ونيو. په دې وخت کې يې شاوخوا پام وکړ، وې ويل: له ډاره څه نشو ويلی، زړونه مو له سرو وينو نه ډک دي. اصلي خبرې ته راځم.

دري میاشتې مخکې مونږ د بلخ په شولګره کې وو، حالات ورځ په ورځ رابانــدې خرابېدل. جګړه له یوې ورځې بلې ته ښه تودېدله. امریکایان او انګرېزان چې کله مزارشریف ته راورسېدل، په طالبانو یې سور اور راښکته کړ. شمالي ټولواله د دوستم ملېشې د امریکایي قواوو سره یوځای په طالبانو لاس پورې کړ، ښار یې لوټې لوټې کړو، ویل کېدل چې امریکایان بې پنجاه و دو د طالبانو په مرکزونو راغورزوي. دغه ظالم شی چې یې استعمال کړو، د طالبانو پیږمې وشلېدې. یره ته باور وکړه که دغه شی یې نه وای استعمال کړی، د طالبانو ماتې ګرانه وه. مرګونه او جنګونه کلیو ته راوغزېدل، د ګلیم جم او رباني ټوپک والا په کلیو راوختل، د پښتنو هر کلی به یې امریکایي فوځونو ته په ګوته کاوه، ورته ویلې به یې چې دا ټول طالبان دي. هغوی به هوایي بمونه پرې راغورزول، د کلیو بې ګناه خلک، ښځې، ماشومان او بوډاګان به یې قتل کړل. د پښتنو په کلیو کې څوک ژوندي نه دي پاتې.

یوه ورځ مې خپل آس زین کړو، د یوه خپلوان پوښتنې ته تلم. خپلوان څوک و، خو هغه زما زوم و. ډېر سخت ټپي شوی و، ما وی چې پوښتنه یې وکړم. په سره ډزه کې له کوره ووتلم، د هغه کور په بالاحصار کې و. کله چې زه هلته وروړسېدم، د بالاحصار په کلا سخته جګړه روانه وه. زه په چالاکۍ سره د زوم کور ته ورسېدم. د هغوی له کلا نه تور سرې راووتې، پام مې ورته کاوه ټولو ژړل. زه له آس نه کوز شوم، زر زر ورغلم. په دروازه کې مې لور مخې ته راغله، وارخطا له ژړا نه یې سترګې سرې آړولې وې، هغې سمدستي زما خواته رامنډه کړه او چیغې یې جوړې کړې، په غېږ کې مې ونیوله، ما وی څه خبره ده؟

ویل خبره له خبرې نه وتلې ده، بهادر خان یې نن ښخ کړ، بچې مې حېران پاتې شول. ما وې دا څه وای. په وارخطایي سره دننه کلا ته ننوتلو، کتل مې چې کلا کې څو تنه سړي او ښځې سره ناستې دي، یو ملا هم په هوجره کې ناست دی، څوک چې نوي راځي، هغه یو د قران مجید سورت وایي او دوعا کوي.

په هوجره کې کښېناستم، څوک تلل او څوک به راتلل. په کلا کې ګڼه ګوڼه زیاته وه. یوه سپین ږیري په جګ اواز وویل: ورونو راځئ، چې اوس نورو شهیدانو ته ورشو. ټول خلک پاڅېدل، له یوه سړي نه مې پوښتنه وکړه، ما وې وروره نور هم څوک مړه دي؟ هغه ووې چې په بالاحصار کې او نورو کلیو کې بې شمګره خلک بې وژلي دي. دننه په بالاحصار کې مړي پراته دي، لا جګړه روانه ده، امریکایي او انګلیسي قواوو د طالبانو ښځ ویستلی دی. طالبان خو څه کوي، د کلیو بې ګناه پښتانه یې ټول قتل کړل. دا خلک د کلي نورو مړو ته ورځي. ما وې وروره زه به هم درسره ولاړ شم. هغه وې ولې نه راځه، چې ځو. هغه رانه زر پوښتنه وکړه، ویلې: وروره ته د کوم ځای یې؟ زه د شولګرې د لوی کلي یم. د اختر محمد د زوی بهادر خان پوښتنې ته راغلی وم، له بده مرغه چې په مړي یې راواوښتم. مونږ لا په خبرو کې وو، چې مخامخ په یوه کوڅه ور روان وو.

تلو تلو وړاندې یو جومات مخې ته راغی. ډېر خلک پکې راټول شوي وو، چا اودسونه کول، څوک په لمانځه ولاړ وو. موږ هم زر زر اودسونه تازه کړل، جومات ته ورننوتلو. د ماسپښین جمعه ودرېده، په پای کې ملا صاحب دوعا وکړه. ملا دا هم وویل: لاس پورته کړئ، چې الله تعالی له موږه دا شر پورته کړي. شهیدان دې خدای وبښي، هر څوک چې زموږه خاورې ته، زموږ خلکو ته په بدو سترګو ګوري، خدای دې پخپله خدایي سره واخلي. په اخر د دوعا کې ملا امام وویل: ورونو د شهیدانو لیدو ته به ټول ورشو، وخت کم دی، چې د ښخېدو وخت یې رارسېدلی دی. ملا مخکې شو او نور خلک ورپسې شول، د جومات ترڅنګه یوه کور کې درې تنه شهیدان شوي وو. لومړی د هغوی لیدو ته ورغلو، دوعا مو ورته وکړه. د بیا د کلي په یوه وړاندې کوڅه کې شپږ تنه شهیدان شوي وو. د یو تن صورت روغ و، مګر نور پېنځه تنه بیخي چنېدلي وو. له پېژند ګلوۍ نه وتلي وو. خلکو خپلو کې سره غلي غلي ویل: هغه نور مړي لا د دېنه هم زیات خراب شوي دي. ما له یوه نه پوښتنه وکړه: اندېیواله نور مړي هم شوي دي؟

هغه راته په ډډه وکاته، ته لا نه یې خبر؟ ما وی نه نه وروره زه د بل ځای نه راغلی یم. سړي راته د کلي کوز سر کوڅې ته ګوته ونیوه، ویل: هغه لوړ چنار وینې؟ ما وې هو. د هغې چینار څنګ ته یوه ژوره سیمه کې یو کلی دی درویشت تنه پکې قتل شوي دي. ددغو مره مړو ښخېدل څومره ګران کار دی. بیا مې بله پوښتنه ونه کړه، پوه شومه چې پښتانه یې تباه کړل.

د کلیو ټول مړي ان تر ماښامه د تورتم لګېدو پورې ښخ شول. زه ناوخته د لور کور ته وخوزېدم، تورتم لګېدلی و، چې د هغوی کلا ته ورسېدم. په دروازه کې څو تنه هلکان ولاړ وو، چې یو تن یې زما لمسی و. هغه د ننه ننوېستم. هوجره کې خبرې اورېدل کېدې. سر مې وردننه کړ، چې کتل مې خپلوان څو تنه سره ناست وو. ټول پخپل ځای ودرېدل، ما ورته د مړو د ښخېدو کیسه تېره کړه. هغوی وویل: مورې هم دا دی اوس ترې راغلو. ښه شو ټول مړي خاورو ته وسپارل شول. اختر محمد چې د 65 کالو سړی و. هغه هم لږه شېبه پس راننوت. یو بل خپلوان ورته ډوډۍ راوړه. په هوجره کې ناست کسان ډوډۍ ته کښېناستل. له چای او ډوډۍ نه وروسته ځینې کسان کورونو ته ولاړل، یوازې اختر محمد او واړه یې پاتې شول. تر نیمې شپې پورې مې هغوی ته تسلي او ډاډ ورکاوه. شپه مې ورسره سبا کړه، سهار وختي مې آس زین کړو او له هغوی نه مې رخصت راواخیست او د کور په لور مې آس قمچین کړ.

ماښام تېر خپل کلي ته ورسېدم. څنګه چې د لوی لارې نه د کلي په لومړۍ کوڅه کې مې آس ورو کړ او په کوڅه باندې مخامخ روان شوم. لا یوه ټوټه مزل مې نه و کړی، چې وړاندې د کوڅې په منځ کې د خلکو ګڼه ګونه وه، تورتم و د ځینو کسانو سره لاټینونه و. د کوڅې بل اړخ ته روان و. په یوه سړي مې غږ وکړ: وروره ودرېږه، یوه پوښتنه درنه کوم.

هغه پښه نیولی شو، ودرېد. زه خواته ورنږدې شوم. وروره څه خبره ده، په دغه کوڅه کې ډېر خلک روان دي؟.

ولې ته خبر نه یې؟

نه نه زه خبر نه یم، خیر خو دی؟ خیر چېرته دی، د ملک کاکا دوه زامن یې یې د شولګرې په دوکانونو کې وژلي دي.

له آسه کوز شوم، سمدستي مې زړه درزا پیل کړه.

وروره د کوم ملک، ددې کلي خو یو ملک دی نو !

ملک افسر خان نه پېژنې؟

دا څنګه؟ دا کله؟ په مغزو کې مې کړنګ وشو. هغه زما تره یادوې؟

راځه نورې خبرې پرېږده، خو سیداجان او میراجان یې نن ماسپښین دواړه وژلي دي، سبا ته یې ښخوي.

نور نو په ځان پوه نه شوم، سمدستي مې ځان ور ورساوه. آس مې په دېره کې وتاړه او زه د کلا دروازې ته ور روان شوم. دومره وارخطا وم، چې دوه ځلې د کلي دروازه کې راخطا شوم. پښې مې اړ و پړ شوې، نږدې رالوېدلی وم. په دروازه کې ورننوتلم، د ښځو ژړا او ویرونه مې مې غوږ ته راورسېدل. د کلا په دالان کې خلک راجمع وو. پام چې مې وکړ، وړاندې برنډه کې دوه جنازې پرتې وې. ښځې ترې شاوخوا ناستې وې. ټولو زه ولیدم، چې ورروان وم. زما په لیدو د ژړا غږونه یو انګور جوړ شو. وارخطا وارخطا مې ځان ورورساوه.

د دواړو جنازو د شهیدانو د کټونو په بازوګانو مې لاسونه کېښودل او ورپرېوتم. بیا مې ځان ونه پېژانده، تر ډېره وخته پوره په کلا کې د ساندو او ویرونو چیغې پورته کېدلې. کاکا مې راغاړې وت، سلګو نیولی و. هر چا په زوره زوره ژړل. لږ لږ په ځان پوه شومه، د کټ بازو ته چا کښېنولم، زړه مې راټینګ کړو، اوښکې مې پاکې کړې، ایله دومره مې له خولې ووتل: دا څنګه چل شوی دی؟

کاکا مې په ژړغوني غږ وویل: بچیه دا یې ماسپښین د شولګري په دوکانونو کې وژلې دي. د کلي نور کسان یې هم وژلي دي. په دې وخت کې له بیرون څخه یو تن راغی، داسې یې وویل: هدیرې ته یې مړي راوړي دي، خلک په هدیره کې راټول شوي دي، ناوخته دی دا مړي راخلئ. خلک له دواړو جنازو نه تاو شول، ښځو او نرو د کور لوی وړو ویر جوړ کړو. جنازې پورته شوې، د کلا تر دروازې پورې ترڅو چې جنازې وتلې، ویرونو کلا لړزوله. په بیړه سره جنازې له کلا نه ووتلې. د کلا په دروازه کې ښځې او ماشومان ودرېدل. د سیداجان او میراجان مېرمنو خپل ویښتان شکول او چیغې یې وهلې، ترڅو چې دواړه جنازې یې له سترګو پناه شوې. جنازې په منډه منډه خلکو هدیرې ته ورسولې. د هدیرې په څنګ کې لوی میدان و، نورې جنازې هم پکې ایښې وې.

د خدای مخلوق راغونډ شوی و، سپین ږیري، تور ږیري، واړه ځوانان ټول د شاوخوا کلیو نه راغلي وو. د هدیرې په وړاندې ګوټ کې ځای پر ځای تور سرې هم ښکارېدې. عمومي جنازه وشوه، یوه د سپینو جامو ملا د خلکو مخې ته ولاړ و، وعظ یې کاوه. د وعظ په پای کې یې د اسې وویل: وروڼو لاس پورته کړئ، الله ته سوال زاري وکړئ، ترڅو زموږ په وطن کې جګړه بنده شي. هر چا زموږ وطن وران کړو، اخر امریکا را پسې راغله. زموږ په خوار اولس یې خپلې وسلې ازمېښت کړې. اوس پرې وار د امریکایانو او انګریزانو دی. کلي او ښارونه یې چې څه پاتې وو، دوی په بمونو او راکټونو وویشتل. په دې لوټ شوي او تالا شوي ملک کې نور څه پاتې دي، چې دوی له موږه څه غواړي. خدایه څوک چې په موږه ظلم او ناروا کوي، له مخه یې تباه کړې. په دې وخت کې یوه تور ږیري سړي د ملا صاحب په غوږ کې یو څه وویل، ملا نورې خبرې د امریکا په باب ونه کړې، خوله یې ونیوله. یو حدیث یې تېر کړ، نورې خبرې یې په نیولي غږ وکړې. د شهیدانو جنازه وشوه، خلکو مړي پورته کړل او هدیرې ته یې هر مړی خپل خپل قبر ته یووړ. مړي ښخېدل او د قبرونو په سر ملایانو په جګ اواز د خدای کلام آوراوه. هر ملا د زړه له اخلاصه مسئلې کولې. چا خاورې ده مولې او په قبر یې شیندلې. ځینو له ځانه سره پټ پټ د شونډو په سر کلیمې ویلې. چا د مړو د قبرونو له پاسه څادرې نیولې وې. د قبرونو ترڅنګه وړاندې د شهیدانو خپلواني، تور سرې ښځې یو تر بله نږدې ناستې وې. د هرې ښځې پرمخ اوښکې روانې وې. د یوه قبر څنګ ته د ښځو د ډلې په منځ کې یوه ښځه نورو ښځو له لاسه نیولې وه، خو هغې ښځې چیغې او نارې وهلې. همدا یې ویل: خدایه په دوستم او امریکا تندر راوارتوې! زما بچي یتیمان شول، الله کور مې وران شو، خدایه ته خو د ظالمانو کور وران کړې. همدا یې ویل او ستونی یې بند شو، اواز یې په ټپه ناست و، بې خودي پرې راغله. نورو ښځو په غېږ کې ونیوله او پرې راټولې شوې، هدیره کې بده ورځ جوړه وه، ژړا او چیغې وې.

په هدیره کې د ټولو خلکو شونډې وچې وې، له خلو نه یې اسویلي بادېدل.

مړي ښخ شول، دوعا وشوه. وروسته بیا د هدیرې په سپین میدان کې خلک ودرېدل او اخري دوعا او فاتحه وشوه. خلک له هدیرې نه هرې خواته روان شول. په ټولو کلیو کې یو شان خپګان و، د شپې له خوا د بالاحصار په کلا توده جګړه روانه وه. ډېر طالبان دننه په کلا کې بند پاتې وو او مقابله یې کوله. تسلمېدو ته یې غاړه نه ایښوده. له شمالي ټلوالې او امریکایانو سره په سخته جګړه اخته وو. له دواړو خواو نه مړي زخمیان کېدل. ځینې مړي زخمیان به کلیو ته راچلېدل، په بالاحصار څو ورځې جګړه کېدله. امریکایي عسکر له بالاحصار نه راتاو شوي وو، د ټانکونو او هوایي الوتکو غړمبا ټول مزارشریف لړزاوه. سبا ته وختې په کلیو کې احوال ولګېد، وویل شول چې بالاحصار یې ونیو، طالبان یې تسلیم کړل او ویې وژل.

او دا هم ویل کېدل، چې د طالبانو سره پاکستاني جنګیالي هم وو. مازدیګر لمر په غړغړه و، یو زخمي یې په آس اچولی کلي ته راوړ. د زخمي په خوله کې ایله بېله ساه وه، نور ختم و. یو زلمی چې ددغې کلي دا زخمي چې بې راوړ، خلک ترې راتاو شول او پوښتنه بې ترې کوله. لومړی هغه هېڅ نه ویل، خو چې د کلي خلکو ډېر ټینګ کړ، پخپلو وچو شونډو یې ژبه وګرځوله. سترګې یې راووېستلې، داسې یې وویل:

وروره د ځانونو غم کوئ، والله که مو ژوندي پرېږدي. د امریکایانو سره یوځای دوستمیان او ټلواله یوځای په طالبانو پسې ګرځي، چې نوم پښتون مخې ته ورځي، ژوندی یې نه پرېږدي.

زمونږ خوا ته ښه رانژدې شو، په کراره یې مونږ ته داسې وویل:

فکر مو اوسه په دې وخت کې یوځای ډله ډله مه درېږئ، همدا نن غرمه زه خبر شوم، چې له کلیو نه پښتانه په یوه بهانه او بله بهانه بیایي، پام کوئ فکر مو اوسه. ښه به دا وي، چې پخپلو کورونو کې ونه اوسېږئ، ځانونه غیب کړئ.

د سړي په خبره مونږ د جومات چنې ته ولاړ کسان حېران پاتې شوو. خپلو کې مو سره وویل: درځئ چې اوس کورونو ته لاړ شو. سبا ته به په حالاتو ځانونه پوهوو.

شپه د کليو خلکو باندې په وېره او ډار تېره شوه. سهار شو، ما ځان لږ وختي د جومات مخې ته ورساوه. کتل مې چې په وستل کې درې څلور تنه کليوال ناست دي سره غږېږي. زه د هغوی خوا ته نږدې ورغلم، سلام مې وا چاوه ورسره کښېناستم. هغوی د حالاتو په باب سره خبرې اترې کولې. وړاندې په کڅ کې په نری لاره يو سړی په آس سور راروان دی. موږ ټول د هغه په تماشه شوو. موږ پوهېدو چې دغه سړی خامخا د کلي دی، کوم نوی احوال به يې راوړی وي. موږ لا په دې سوچ کې وو چې هغه زموږ نه وړاندې د کلي په لويه دروازه راننوت. د وستل ترمخه په لاره راروان و. کله چې موږ ته راورسېد، له آس نه کوز شو. موږ ټولو هغه وپېژانده چې هغه د کلي يو سړی و، زوی يې په بالاحصار کې له طالبانو سره عسکر و. هغه خپل آس ودراوه او زموږ خوا ته راغی. سلام يې وا چاوه، موږ ورته ستړي مشي وويلې. زموږ له ډلې نه يو تن ډېر بې واره و. دستي يې ترې د هغه د زوی پوښتنه وکړه. ويلې لومړی دا ووايه چې زوی دې ژوندی دی که نه؟

هغه چې رنګ يې زېړ آلوتی و، شونډې يې وچې وې، خپله ژبه يې په وچو شونډو وګرځوله، ويلې نه؟ ډېرې پوښتنې مې له يو بل نه وکړې، مګر هېچا راته څه معلومات رانکړې. بېګا مازديګر ټول بالاحصار تسليم شوی دی، کومو کسانو چې مقاومت کاوه، هغوی يې نيولي دي، زيات پکې مړه دي.

ما وی وروره ته خو پوره کيسه وکړه، څنګه چل شوی دی؟

هغه د بالاحصار پلو مخ واړاوه، ويې ويل: وروره د محشر ورځ تېره شوې ده. پرون په بالاحصار الوتکو بمباری کولې او لاندې توپونو او ټانکونو په بالاحصار اور بل کړی و. د ماسپښين نه وروسته جګړه ودرېده. په بالاحصار د دوستم او رباني دوی عسکر وروختل. خارجي قواوې هم د بالاحصار په شاوخوا کې وې. دومره مخلوق مړ شوي دي، چې په زرګونو طالبان وژل شوي دي. حېران دې ته يم چې په مړو به څه کوي، ځکه چې هغه خو د ښخولو نه دي او نه څوک شته دی، چې دومره قبرونه اوباسي، خو خلکو سره خپلو کې ويلې چې مړي په بيلدوزرو ښخوي. کندې ورته اوباسي او مړي ورته ورګوزاروي. ډله ييزو قبروو کې يې وراچوي، ژوندي چې څوک پاتې دي، هغوی زندان ته بيايي.

په ټولو کليو کې پښتانه رانيسي او له کوره يې باسي، له ځان سره يې بيايي. دومره خلک يې نيولي دي، چې د پېنځه شپېږ زرو نه خامخا زيات دي. دا خو ټول طالبان نه دي، خو چېرته چې يې پښتانه پيدا کړي دي، نيولي يې دي. زه په همدې خاطر نن دلته راغلی يم، چې دا پاتې پښتانه خبر کړم، چې د ځان غم وخوري، که نه نو خبره خرابه ده، هو خرابه ده !.

دوعا وشوه، له جومات نه خلک خواره شول او خپلو کورونو ته لاړل. زه هم خپل کور ته راغلم. د ماښام له ډوډۍ نه وروسته په دې شپه تر ډېره کښېناستم. ماشومان او مېرمن مې ويده شول، زه هم پخپل کټ کې پرېوتم. ما لا ډډه نه وه لګولې چې د کلي سپو غپا جوړه کړه. غوږ مې چې ونيوه، د کلي په هره کوڅه کې د سپو غپا زياتېده. زه له کټه راجګ شوم او د کور برنډې ته راووتم. د کلي شاوخوا ته مې پام وکړ، سپو همغه شان غپلې. د کلي د کڅ سرته په سرک کې موټرې د کلي په لور راروانې وې. سړک زموږ د کلي ترڅنګه تېر شوی و، ما ښه ورته ځان ځير کړ. ما وی چې دا به د دوستم دوی عسکر وي، چېرته به ځي. د موټرو څراغونه به کله ګل شول او کله به ولګېدل. سړک خو بې له هغې کندې کندې و، ما فکر کاوه، چې دا موټرې په لوړو ژورو کې خېږي او کوزېږي، ځکه يې سترګې نه معلومېږي. خو هغه د دوی خپل مانور و. ما هېڅ فکر نه کاوه، چې ګنې دوی به کلي ته راځي او خلک به له کورونو نه وباسي. موټرې راروانې وې او سپو هم ډېر غپل.

زه لاړم بېرته مې ډډه واچوله، نسوار مې لا خوله کې دي، ښه پوره وخت په سوچ کې لاړم. يوه شېبه وروسته مې شور او غرپا تر غوږ شوه. بيا مې سر له کړکۍ رابهر کړ، لاندې کوڅه کې هرې دروازې ته وسله وال سړي ولاړ دي، د کلي منځ ته مې چې سترګې واړولې، شور او غالمغال دی. د مازديګر د بوډا سپينږيري خبره مې نبغه زړه ته ودرېده. تر مازديګر ناوخته د جومات په شاوخوا کې د کلي خلک خپلو کې سره جرګه جرګه کېدل، همدا بې ويل چې څه چاره ولټوو. اوس خو خبره زموږ سرته راغلې ده. ښځې او کورونه خو نشو پرښودلی. هرڅه چې رابانديې کېږي، کېږي به ! مرګ مو قبول دی، خو دا شرم نشو قبلولی.

په تاريخ کې به مو بچو ته پېغور پاتې شي. تر ناوخته همدا فيصله وشوه، چې په همدې خپل کلي کور کې به ناست يو مرګ وي او که درد، همدلته به يې تېروو. هلته ورانده د جومات په برنډه يو زوړ بوډا سپين ږيری ناست و، خپلې تسبيې يې اړولې. خلکو ته يې مخ راواړاوه، ويې ويل: هلکانو پام کوئ دا ترکمن او ازبکان مو نه پرېږدي، موقع ورته په لاس ورغلې ده، په هر سبب چې وي دا ځل پښتانه بې مرګه نه پرېږدي. تاسې خپل اتفاق او بيا لاړې ګودري ګورئ. اګرچې پښتانه بې اتفاقه قوم دی، دا ټولې نادودې يې پخپله په ځان راوستې دي، که دوی لږ په اتفاق وای، مشر او کشر يې معلوم وای، د بل په د سيسو نه غولېدای، داسې حالت به پرې ولې راتلای؟.

اوس پخپلو کې سره يو شئ، يوه خبره غوټه کړئ او بيا پرې عمل وکړئ که نه نو دا ځل بيخي دل کېږئ. د بوډا خبره چې خلاصېده، ملا د ماښام اذان وکړ. خلک په جمعه ودرېدل، د لمانځه په پای کې ملا امام دوعا وکړه او د دوعا په اخر کې يې وويل: ورونو لاس پورته کړئ، چې الله پاک سوله راولي، زموږ د مسلمانانو خو ددې زورور ظالم سره زور نه رسېږي، خدای دې پخپله خدايي سره مسلمانانو ته بری ورکړي. دا ځل پښتانه بې مرګه نه پرېږدي.

زه له په دې فکر او سوچ کې وم، چې د کلا دروازه وټکول شوه. مېرمن مې راجګه شوه، ويلې سړيه پاڅه دروازه ټکېږي. زه له کټ نه پاڅېدم، ښځې ته مې وويل: تاسې مه وارخطا کېږئ، کېدای شي د کلي څوک وي او ماسره يې څه کار وي. زه راښکته شومو شاته مې مېرمن هم راپسې جوخته راروانه وه. د کلا دروازه مې خلاصه کړه، کتل مې چې شپږ تنه ټوپک والا ولاړ دي. مېرمن مې چې دوی وليدل، په چيغو يې لاس پورې کړ. دغسې چيغې د کلي په هر کور او کوڅه کې اورېدل کېدې، سړو وويل: خوارجان ګريه نه کن، شوهرت زود پس می آيد !.

ما يوازې خپلې ښځې ته همدومره وويل: دروازه کلکه کړه، زه بېرته راځم ! زه دوی له ځان سره روان کړم. دوی راته يوازې دا وويل، چې د کلي ټول خلک يې غوښتې دي، په زړه کې دې بل څه تېر نشي. ماته د بوډا خبره بيا نبغه مخې ته ودرېده. روان يې کړم، د کلي د هرې کوڅې نه يې خلک راوېستلي وو او د سړک په خوا روان وو. موږ هم سړک ته ورسېدو. په سړک ډېرې موټرې ولاړې وې، د کلي ټول خلک يې سړک ته راوستل، يوازې د وسله والو نه يو چا غږ وکړ، وې ويل: "برادران شما را قوماندان صاحب خواسته چيزی ګپ ميزند، ديګر هيچ ګپ نيست".

نور یې هېڅ ونه ویل. د کلي ټول خلک یې په موټرو کې کښېنول او د مزارشریف بالاحصار په لور یې حرکت وکړ.

موټرې خو څه عسکري وې او څه چکلې لارۍ وې. ټول کلي په ژړا او چیغو پاتې شو، سپو هماغه شان غپلې چې موټرو حرکت وکړ. په هر موټر کې وسله وال د کلي د خلکو سره کښېناستل، د بالاحصار په لوري موټرو حرکت پیل کړ.

زه یې هم یو موټر ته وخېژولم، په هر موټر کې د کلي خلکو یو تر بله سره پېژندل. زموږ سره په موټر کې هم ټول بلدي کسان ناست وو، توره شپه وه، تورتم کې یو بل سره نه لیدل، مګر یو بل سره به چې خبرې وکړې، په موټر کې ناستو کسانو به هغوی او چت وپېژندل. لږه شېبه چې موټرو لار ووهله، خلک زموږ په موټر کې غلي ناست وو. ناڅاپه د موټر له یوه ځای یوه تن داسې وویل: د طالبانو دې خدای کور وران کړي، د هېچا یې نه منله، ټول پښتانه یې پرې قتل کړل. خپله خو قرانګو که به د اسلام او پښتونوالي نښه ورکې وه، خوشې ټولې دنیا ته یې پښتون سپک سپاند کړ. ګورئ په دا نیمه شپه ټول کلي یې له خلکو خالي کړ. ای ورونو په دې ښه پوه شئ، چې موږ او تاسې مرګ ته بیایي. په موټر کې ناست کسان ټول پوه شول، چې دا خو د کلي (میراب) صاحب دین اکا دی. په دې وخت کې یو تن ټوپک والا پرې ګراغوټه شو، په کونداغ یې وواهه. صاحب دین اکا یو اخ وکړ. په موټر کې ناستو کسانو ټولو په یو اواز ټوپک والا ته ویل: مه چې د کلي میراب ونه وهې، دی خو طالبان یادوي، تاسې یې خونه یاست یاد کړي. دا خو د ټول کلي خدمتګار غریب سړی دی، ولې دې په کونداغ وواهه، دومره د پښتنو ټکولو ته تږي یاست؟

ټوپک والا په قهر او غضب وویل: ګپ نزن، شما طالبای بی فرهنګ وحشی!

ټولو په موټر کې ناستو کسانو ورته وویل: خوله دې سمه خوزوه، ردې بدې مه وایه!. یو تن کلیوال وویل: ورونو ده سره ځان مه سموئ، پرېږدئ چې چېرې مو وړي، نورې خبرې به هلته د دوی مشرانو سره وکړو. هغه بیا وویل: "والله اگر به گپ زدن ات بماند".

د هغه له دغې خبرې سره ټول چوپ او غلي کښېناستل. موټر روان و، ډېره لاره یې ووهله. ترڅو چې د مزارشریف بالاحصار ته ورورسېدو. موټرې ودرېدې، شپه هم په وتو وه، چرګانو اذانونه کول، چې مونږ د بالاحصار دروازې ته مخامخ په سړک ودرېدو.

یـوه شـېبه پـه مـوټرو کـې ناسـت وو ، لـه مـوټره مـې چګـې پـام کـاوه، د بالاحـصار مخـې او شـاوخوا دومـره ډېـرې مـوټرې او خلـک لیـدل کېـدل، چـې هـېڅ پـه شـمېر کـې نـشوای راتـلای. یـو تـن زمـوږ مـوټر تـه نـزدې راغـی، د مـوټر سیټ کـې یـې کـوم یـوه سره څـه وویـل او بېرتـه لاړ. لـږه شـېبه وروسـته وسـله وال د سـړک دواړو غـاړو تـه ودرېـدل، د بالاحـصار د کـلا دروازې پـورې پـر سـړک ټوپـک پـه لاس عـسکر ولاړ وو. شـپه ووتـه، رڼـایي ولګېـده، هرڅـه لیـدل کېـدل. ټانکونـه او توپونـه ځـای پرځـای ولاړ وو، وړانـدې امریکـایي عـسکر ښـکاره ترسـترګو کېـدل، لـه دربـشۍ او وسـلو نـه اوچـت پېژنـدل کېـدل. زمـا زړه کـې دا تېرېـدل، چـې امریکایـان خـو شـته دی، پـه مـوږ بـه څـوک ظلـم نـه کـوي. لـه مـوټره راښـکته شـو، پـه سړک یـې مخـامخ د بالاحـصار د کـلا دروازې تـه روان کـړو. زمـوږ د کلـي خلـک یـې ټـول پـه سړک روان کـړل. کتـل مـې چـې د بالاحـصار د کـلا پـه دروازه خلـک ورننوتـل. کلـه چـې مـوږ دروازې تـه ورنـږدې شـو، څـو تنـه خـارجي کـسان او د دوسـتم او ربـاني یـوه ډلـه قومانـدانان او مهـم کـسان ولاړ وو. دروازه کـې وسـله وال کـسان پـه داسـې حـال کـې و، چـې چـا پـه دروازه کـې د ننوتلـو پـه وخـت کـې خلـک شـمېرل د یـوه تـن سـره قلـم او کاغـذ پـه لاس کـې و. ځینـو وسـلې تیـارې نیـولې وې، لـه دروازې بـه دوه دوه تنـه دننـه ورننوتـل.هغـوی بـه زر زر شـمېرل. زه چـې دروازې تـه وررورسـېدم، دویـم تـن راسره زمـوږ د کلـي یـو خیـاط (کـالي ګنډونکی) ملګـری شـو. هغـه د ننوتلـو پـه وخـت کـې ماتـه وکتـل او مـا هغـه تـه. لـه دروازې تېـر شـو. دننـه لاړو، چـې پـام مـو وکـړ، دننـه د بالاحصار کـلا خـو پخـوانۍ عـسکري کـلا ده، چـې بـې شـانه لویـه ده، پـه زرګونـو خلـک پکـې ځـایېږي. دننـه پکـې ودانـې ډېـره ده، مـوږه چـې لـږ وړانـدې ورتېـر شـو، ټوپـک والا ودرولـو. شـاته مـې چـې پـام کـاوه، زمـوږ د کلـي خلـک ټـول ولاړ وو. پنځـوس متـره وړانـدې د کـلا دیوالـه تـه څېرمـه بـې شـمېره ډېـر خلـک ناسـت وو، څـو تنـه وسـله وال ورتـه ولاړ وو. مخـامخ د یـوې لـوېې ودانـۍ پـه غټـو کوټـو کـې د خـدای مخلـوق ناسـت وو. همـدا شـان پـه دواړو چـپ او ښـي پلـو څـو متـره وړانـدې کوټـو کـې یـې طالبـان اچـولي وو. مـا چـې پـه کـلا کـې دننـه دا د خـدای مخلـوق ولیـد او ټـول حـالات مـې لـه نظـره تېـر کـړل، پـوه شـوم چـې دا دومـره ډېر خلک یې تش د طالبانو په نوم راوستلي دي.

مـوږه سره پـه کـلا کـې دننـه سمدسـتي بـل ډول چلنـد کېـده، نـه مـو چـا خبرو تـه غـوږ ایـښوده او نـه یـې راتـه د انـسانیت پـه سـترګه کتـل. لمـر راوخـوت، مـوږ لا همغـسې ولاړ وو. ځینـې کـسان چـې بـې وسـه وو او یـا سـپین ږیـري و، هغـوی ځـای پرځـا یناسـت وو. پـه دې کـې دوه وسله وال راغلل او داسې یې وویل: اوغانا بشیند.

موړ پخپلو ځایونو کښېناستو. د ورځې تر دولسو بجو پورې ځای پرځای ناست وو. اوبه او ډوډۍ یې نه راکوله. ما چې د کلا د ټولو راوستلو خلکو او طالبانو په ګډون اټکل وکړو، تقریباً شپږ زره کسان به وو. د ورځې له دولسو بجو نه وروسته یې اوبه راوړې. هر چا اوبه وڅښلې، خو همدا به یې ویلې: د خپلځایه مه ښوربږئ. هر څوک باید پخپل ځای کښېني، بله خبره نشته دی، همدا نن تاسې د مزار ښار ته بیایي. هلته کومه عمومي غونډه ده، د خبرو اترو لپاره غونډه جوړه شوې ده.

یوه تن په ناستو کسانو کې ورناري کړې: وروره بې له هغې مو وژنئ، دومره خو وکړئ، چې لږ خواړه او اوبه خو راته راوړئ، له لوږې او تندې مو ولې وژنئ. وسله وال چې اصلاً ازبک ښکارېده، خیرن لنګوټې یې له سره تاو کړې و، د نسواري بخمل اوږد کمیس یې په تن و، لنډ پرتوګ او زاړه عسکري بوټان یې په پښو و، چیته پوزه او شنې بخنې سترګې یې وې، لنډکی ږیره یې وه. د دېرشو کالو به و، له نورو نه دی لږ د انصاف خاوند و. ویلې: برادرا از انجا از چاه در سطل آب بیارید، مګر درینجا نان مان نیست. دوه تنه ګړندي پاځېدل او به پسې ولاړل. د هر چا خوله وچه وه، ځکه چې ډېرو خو نسوار اچول او بېرته یې توکول. د کلي خلک له خپلو ځایونو نه راوخوځېدل. یوازې خو زموږ د کلي خلک نه وو، په دې کلا کې یې د ډېرو کلیو خلک راټول کړي وو. طالبان هم پکې وو، مخکې چې څه طالبان په دې کلا کې اوسېدل، هغوی څه وژل شوي وو، څه زخمیان او ځینې یې ژوندي په کلا کې رابند کړي وو. د کلیو خلک یې چې ټول پښتانه وو، نه طالبان، ولې د طالبانو په نوم یې راوستي وو او په کلا کې یې اچولي وو. امریکایانو ته یې ویلي وو، چې دا ټول طالبان دي او القاعده دي.

زه ټینګ نشوم، له خپلو کلیوالو نه وړاندې لاړم. د بالاحصار د کلا دننه نورې ودانۍ دوه پوړه او درې پوړه جنګې برجونه بې درلودل. په کوټو کې او هم دباندې مچ میږې خلک خوزېدل. دا خلک ټول یا طالبان او یا د کلیو خلک یې راوستلي و. هر چا ته مې غوږ ونیوه، چې څه وایي. چا به ویلې ساعت پس به جرګه جوړېږي، موږ ټول به پکې ګډون کوو. دا خبره به زیاتره د کلیو د خلکو له خولې ګراوتله. ځینو به ویل په عمري بند مو بندیان کوي او چا به ویلې په قران که به نور ترې د ژوند څکه وکړئ. طالبانو خو هسې ګلونه نه دي کرلي، چې ګنې مونږ به روغ پرېږدي. کاشکې د پښتو او پښتنو لپاره یې خو څه کړي وای. ځینې مې ولیدل هېڅ یې نه ویل. تور مخي ږیرې یې رسېدلې څه چې له نامه نه هم تېرې وې.

اوچت ښکاربدل، چې پنجابيان دي. پخپلو کې به يې سره غلي غلي خبرې کولې، له لوړې او تندې نه بيخي "پړې" شوي وو.

ما چې د بالاحصار د خلکو حال احوال واخيست، پوه شوم چې نه کومه جرګه شته او نه دې خلکو سره انساني چلند کېږي. دا ټول به بندي کوي او يا به يې وژني. په دغه کلا کې دوه ورځې مخکې د طالبانو او شمالي ټلوالې ترمنځ سخته جګړه شوې وه، چې په پای کې امريکايي الوتکو پرې بمباري کړې وه. طالبان يې څه وژلي وو او ځينې يې ژوندي تسليم کړي وو.

يو تن طالب مې وليد، چې د يوه ديوال ترڅنګه ناست و، په لاس کې يې خدا زده د څو ورځو وچه يوه مړه ډوډۍ نيولې وه، په يوه ډډه ناست و، يوه پښه يې زخمي شوې وه، په ټوټه يې تړلې وه، خو وينې تري راوتلې وې. دی لګيا و په وچه ډوډۍ بې شخوند واهه. خواته يې د اوبو خاورينه کوزه ايښې وه، په وچه مړۍ پسې به يې د اوبو ګوټ کاوه. زه د هغه په لور ورروان شوم، هغه کوزه په سر پورته کړه، اوبه يې وڅښلې. ماته يې راوکاته، سترګې يې چخنې، زيږ زبېښلې رنګ خيرنې جامې، د مخ هډوکي يې له ورايه نېغ راختلي وو. کوزه يې پر ځمکه کېښوده، زه خواته وروړسېدم. زما خو جامې پاکې او ظاهري بڼه مې لا تازه وه. هغه راته متوجې شو، خپلې سترګې يې راښخې کړې، ما سلام ورواچاوه، هغه وعليکم ووايه. خواته يې کښېناستم، هغه راته همغسې په ځير ځير کتل. ما وی وروره اجازه ده، چې خوا ته دې کښېنم؟. هغه وی ولې نه کښېنه وروره! زما تلوسه وه ما وی چې د پښې د زخم پوښتنه ترې وکړم. په کرار مې ترې وپوښتل: وروره زخمي شوی يې؟ هغه وی: هو دا پښه مې لګېدلې ده. ما وی ماته خو نه ده؟ هغه خپل اوښکي لړ کوږ غوندې کړو، لاندې يې خپلې پښې ته وروکتل ويلې وروره پښه مې له زنګانه نه کوزه ماته ده.

دا څنګه ولې ماته شوه؟

همدلته پاس په هغه برج کې ناست وم، نور ملګري مې هم راسره وو، هغوی راته شهيدان شول او زه په دې پښه ولګېدم. کاشکې زه هم مړ وای، شهادت به مې پر نصيب شوی وای، له دې حال نه به خلاص وم.

دلته تاسې څو تنه وئ؟

موږ پردې کلا کې بالا له دوه زرو نه زيات طالبان اوسېدلو. ده له دې خبرې سره جوخت وويل: وروره ته هم طالب يې که څنګه؟

ما وی نه وروره زه یې د خپل کلي خلکو سره دلته راوستلی یم. بېگاه یې نیمه شپه راوستلو او په دې کلا یې راننو ېستلو.

ده وی هو نو اوس پښتانه کله پرېږدي. د هغه رنګ کې لږه سورخي پیدا شوه، خپله پښه یې په یوه لاس ونیوه، له خپله ځایه لږ وخوځېده، ویې ویل: ارمان دی چې له دا طیارو او بې پنجاو دو سره نه کېږي، موږ خو خپل وس وچلاوه، خو نه وشوه ! بالا نو نور نه یم خبر چې په ګرد افغانستان کې به څه حال وي؟ موږ خو نو دلته اوبایلوده.

وروركیه ښه نو دا دومره طالبان چې په دې کلا کې وو، هغوی څه شول؟

ټول څه مړه او څه یې ژوندي اسیران کړل. مړي یې په موټرو کې وو ېستل، خبر نه یم چې چېرې به یې وړي وي. دومره مې لیدل، چې موټران به یې ځینې ډکول او له بالاحصاره به وتل. دلته خو خالي په شمار څو تنه زخمیان او یو څو کسان روغ پاتې یو. دا کلا خو داسې ډکه نه وه، دا نور طالبان یې په دا دوو ورځو کې سره راوستل. وروره په دا دوو ورځو کې بل شان حال دی. په زرګونو طالبان بې چاره ګان یې له دې کلا د بالاحصار نه یوووړل. نور هم ورپسې راولي او دوباره یې بېرته په دا لویو کانتینرو کې چېرې وړي. پری خبر نه یم، چې څه به پرې کوي؟

هغه درد ونیو او ښي لاس یې په خپله پښه کېښود او ښکته یې ورته وروکتل. په دې وخت کې یو تن زموږ کلیوال په ما پسې راغی، ویلې راځه چې خلک دې غواړي. له زخمي طالبه مې اجازت راواخیست او خپلو کلیوالو ته خواته راغلم.

یوه راته سمد ستي وویل: انډیواله راځه لیرې لیرې مه ګرځئ، اوازه ده چې کوم امریکایي هیئت راځي، څه خبرې لري. یوه بل د کلي مشر سپین ږیري وویل: رښتیا ده زموږ د کلي ټول ورونه باید په همدې ځای کې سره راټول یوو، چې له نږدې نه ورسره خبري وکړو، چې زر مو رخصت کړي، ټول کلي یوازې ښځو ته پاتې دی، ښځې او ماشومان به څه وکړي؟. په دې وخت کې یوه بل کلیوال پرې غږ وکړ، ویلې: کاکا همدا ته به ورسره خبرې زموږ د ټولو په نمایندګۍ وکړې. د کلي نایي اکا خاورین نړېدلي دیواله ته تکیه وهلې وه، پرت لاړي او نسوار بې له خولې تېر وارتول، همغه سپین ږیري اکا ته یې وویل: پردل اکا نور موږ د لوږې نه مرو، هر څوک چې راغلل او خبرې دې ورسره کولې، لنډې لنډې خبرې ورسره وکړه، چې له دې عذاب نه خلاص شو. یوه بل زلمي وویل: موږ خو نه طالبان یو او نه د هغوی ملګري، مونږ خو یې په خدای قسم دی په دې راوستي یو، چې پښتانه یوو !

مـوږ ځـوک او طالبـان ځـوک ! پخپلـو خبـرو کـې احـساسات شـو. سـترګې یـې سـرې واوښتې، مـوږ امریکایـان څـه پېژني، خو همـدوی مـو ورتـه ورښایي. موږ تـل لـه خپلې لمنې نـه اوراخیـستی دی، مـوږ نـه خارجیـان څـه خبر دي. لـږ شـان غلـی شـو. بیـا یـې وویـل اوس نـو هېڅ نـشو کـولای، هرڅـه چې کېـږي، هغـه بـه کېـږي. نـور پخپـل ځـای غلـی پـاتې شـو. مـازدیګر رانـږدې شـو، ځـوک رامعلـوم نـشول. مـا خپلـو کلیوالـو تـه وویـل: کـه ستاسـې اجـازه وي، زه بـه لـه هغـه دروازې سـره چـې ولاړ ټوپـک والا دی، پوښـتنه وکـړم، ګونـدې څـه معلومـات خـو بـه راکړي.

ټولـو راتـه ووې: ورشـه ولـې نـه یـو څـه خـو بـه درتـه ووایـي. زه پـه منـډه لـه دوی نـه روان شـوم او د کـلا دروازې پـه لـوري وخوځېـدم. زه ورو شـان پـښه نیـولی شـوم. کتـل مـې چـې دوه تنـو بیـرون پـه سـرک مخـامخ د کـانتینرو کتـار تـه اشـاره کولـه. مخـامخ دروازې تـه د کـانتینرونو کـاروان ورو ورو راروان و. مـا ورپـسې سـر ونـه ګـراوه، خپلـو کلیوالـو خواتـه راروان شـوم. لا خپـل ځـای تـه نـه وم رسـېدلی، چې څـو تنـه طالبـان وړانـدې د کـوټې دیوالـه تـه سره ولاړ وو. پـه زوره زوره یـې چیغـې کـړې، ویلـې ای مـسلمانانو وروڼـو، ګـورئ چـې د هـر یـانو بیـا کـانتینرې راوستې، دا درې ورځـې سـر پـه سـر دوی طالبـان او نـور د کلیـو بـې چـاره پـښتانه مـسلمانان پـه کـانتینرو کـې اچـوي او چلـوي یـې. خـدای خبـر، چـې چېـرې یـې وړي. دا دی ورتـه ګـورئ پـه مـوږ او تاسـو پـسې دا کـانتینرې راوستي دي. د طالبـانو پـه دغـه خبـرو ټـول خلـک لـږ وارخطـا غونـدې شـول. لا لـږه شـېبه وتـې نـه وه، چـې دروازې تـه نـږدې د دروازې خـولې تـه لـومړنی کـانتینر ودرېـد. یـوه ډلـه وسـله وال کـسان، چـې لـه بڼـې او جـامو نـه ښـکارېدل، چـې ازبکـو تـرکمن، هـزاره او نـور تاجکـان وو، مـشران یـې مخکـې او نـور ورپـسې لـه دروازې نـه دننـه راننوتـل. مـا چـې لـه خپلـو سـترګو او نظـر نـه تېـر کـړل، تقریبـاً د شـلو تنـو پـه شـمېر کـې راتلـل. د کـلا دننـه ولاړل، وړانـدې پـه کوټـو کـې طالبـان پراتـه و، مـا دا خیـال کـاوه، چـې ګنـې څـو سـوه کـسان طالبـان بـه پـه کـلا کـې وي. خـو کلـه چـې یـې هغـوی لـه کوټـو نـه راوويستل او دروازې پـه لـوري یـې راروان کـړل، د کـلا پـه منـځ کـې د دوو موټرو پـه انـدازه سـړک تېـر شـوی و، پېنځـه پېنځـه تنـه کتـار یـې طالبـان پـه دغـه سـړک ودرول. دا سـې کـسان هـم پکـې وو، چـې د مـرګ تـر سـلګۍ رسـېدلي و، لـه چانـه وینـې روانـې وې، چـا فریادونـه کـول. د ټولـو رنګونـه زیـړ زعفـران ښـکارېدل، وچـې شـونډې، خیرنـې جـامې، د هـر یـوه بـدن لکـه وچ لرګـی داسـې شـوی و، چـې هـر څـومره کلـک زړه وای، د هغـو پـر دغـه حالـت اوبه کېده.

زمـوږ د کلـي خلـک دروازې تـه د پېنځـو سـوو متـرو پـه وړانـدې پـه لويـو لويـو کوټـو کـې سـره ناسـت وو. پـه دغـه وخـت کـې دوه تنـه ټوپـک والا زمـوږه د کوټـو دروازو کـې ودرېـدل. ويلـې بيـرون مـه اوځـئ اجـازت نـشته دی. مـوږ لـه کړکيـو نـه د طالبـانو کتارونـه ليـدل، چـې د کـلا مـنځ سـړک کـې يـې پـه کـرار سـره دروازې خواتـه روان وو. د عقـل نـه وتلـی کـار و، څکـه دومـره ډېـره يـې لـه کوټـو نـه رابهـر کـړل، چـې تعـداد يـې اټکـلاً زرګونـو تنـو تـه رسـېده. دوه ورځـې مخکـې يـې هـم پـه زرګونـو نـور لـه همـدې کـلا نـه وړي وو. زمـوږ د کلـي خلکـو چـې پـه کړکيـو کـې يـې ورتـه کتـل، حېـران او هـک پـک پـاتې وو. يـو بـل تـه سره ويـل: ای دا بـه چېرتـه بيـايي؟ بـل بـه پـسې بـل تـه ويـل: طالبـانو هـم پـه کوټـو کـې ناسـتو کـسانو تـه ورکتـل. دوی پوهېـدل، چـې مـوږ هرومـرو مـرګ يـا زنـدان تـه بيـاي. خـو نتيجـه هېچـا تـه نـه وه معلومـه. مـا د کـلا لـويې دروازې تـه دوه سـترګې ځلـور کـړې وې، مـا وی چـې دا دومـره مخلـوق بانـدې بـه اوس څـه کـوي؟ د کتـار سـرته څـو تنـه نـور غټـان او د ټلـوالې مـشران راورسـېدل. خارجيـان هـم پکـې وو. پـه دروازه کـې ودرېـدل، د طالبـانو لـومړنی سـر آن دروازې تـه رسـېدلي وو. پـه دې کـې دروازه خلاصـه شـوه، طالبـان يـې کـانتينر تـه ورپورتـه کـول. لـومړنی کـانتينر چـې ډک شـو دروازه يـې ورپـسې شـاته بنـده کـړه، او ښـي لـور تـه يـې حرکـت وکـړو، وړانـدې ودرېـد. ورپـسې بـل رامخـې تـه شـو، هغـه هـم د سـترګې پـه رپ کـې ډک شـو او د لـومړني کـانتينر تـر شـا ودرېـد. پـه دغـه ترتيـب سـره ښـه مـې شـمارل (27) کـانتينره ډک شـول او بيـا د کـانتينرانو کتـار ښـي لـور تـه پـه حرکـت پيـل وکـړ. دروازه بېرتـه دوبـاره پـورې شـوه. د طالبـانو کتـار چـې د کـلا مـنځ سـړک يـې پـه خپلـو ليکـو ډک کـړی و، لا نيمـايي تـه نـه و رسـېدلی. مـازديګر نـږدې و، زمـوږ يـوه کليـوال پـه دروازه کـې ولاړ وسـله وال تـه وويـل: وروره د لمانځـه وخـت دی، مـوږ تـه اجـازه وکـړه، چـې اودسـونه وکـړو. هغـه وويـل: ماتـه دا اجـازه نـشته، قومانـدان صـاحب چـې راغـی، لـه هغـه نـه اجازه واخلئ. هر څـومره زاری يـې چـې ورتـه وکـړې، هغـه کلـه منلـه، پـه کوټـه کـې خلکـو تـيمم وواهـه او د مـازديګر پـه لمانځـه ودرېـدل. د مـازديګر لمانځـه نـه وروسـته کتـل مـو چـې د کـانتينرو کتاربيـا راغـی. بيـا يـې هـر کـانتينر تـر خـولې پـورې لـه طالبـانو نـه ډک کـړ او روان شـو. مـوږ هـم ورسـره عـادي شـو. درېـيم ځـل وروسـتنی کتـار چـې راغـی، لـه پـاتې طالبـانو نـه ډک شـو او لاړ. ماښـام نـږدې و، يـوه مـلا ا ذان وکـړ او پـه کـلا کـې پـاتې خلـک پـه جمعـه ودرېـدل. د څـو کليـو خلـک لا د بالاحـصار پـه کـلا کـې پـاتې وو. د ماښام له لمانځه نه وروسته خړنی لګېدلی وه، چې بيا د کانتينرو کتار راورسېد.

دروازه خلاصه شوه، څو تنه ټوپک والا راننوتل، څو تنه یې زموږ خواته راغلل او څو یې د نورو کلیو خلکو پسې چې وړاندې په کوټو کې ناست وو، ورغلل. لومړی یې هغوی راوویستل او د همغه شان مخکینی کتارونو غونډې ي په سړک ودرول. بیا یې موږ ورپسې له کوټو نه بهر کړو او په هغوی پسې یې ودرولو. له وسله والو نه یوه په جګ اواز وویل: برادران شما را به فرقهٔ مزار میبریم. نوري څه ونه ویل. د کانتینرونو خواته مخامخ یې روان کړو. له دروازې بهر د لومړي کانتینر خوله خلاصه وه، خلک یې ورخېژول. په دې وخت کې یوه سړي په زوره په جګ غږ وویل: د خدای لپاره موږ خو میږي او یا نور حیوانات نه یو، چې په دې کانتینرو کې مو وړئ؟ ولې مو وړئ؟ چېرې مو وړئ؟ یوه قوماندان پرې ورغږ کړ: ګپ نزن وحشی، بالا شو! نورنو د هر چا په مری کې لاړې وچې شوې، هر سړی له غږه ووت، خالي د خپل سرنوشت په انتظار و.

نوبت زموږ د کلي د خلکو راورسېد، هوا توده وه، د ماښام په خړه کې یې موږ کانتینر ته ورواچولو. دوه درې کانتینره ځانله زمونږ په کلیوالو ډک شول. زمونږ په کانتینر کې د پښو د ایښودو ځای نه و. کانتینر ته د ورختلو په وخت کې ما ځان لږ وروسته کړ، وروستنی تن زه وم، چې د کانتینر وروستنۍ دروازې په یوه کونج کې مې ایله ځان ټینګ کړ. دروازه د سترګو په رپ کې پورې شوه. توره تیاره شوه، لږه شېبه لا نه وه وتلې، چې خلکو له ګرمۍ نه چیغې کړې، د هر چا ساه بنده شوه. په کانتینر کې دومره کسان ولاړ وو، چې حتا د یوه تن د کښېناستو چاره نه کېده. هوا بنده وه، په لومړي ځل خو چا کلیمې ویلې، چا سورت یاسین پیل کړ او ځینو له سختۍ نه چیغې وهلې او چا کانتینر په لغتو واهه. کانتینر په حرکت کې و. کله به چې کوم جمپ مخې ته راغی، کانتینر به چې جمپ وخوړ، خلک به یو پر بل ورولوېدل. په دغې بدحال کې یوه غږ کړ: ورونو بې له هغې په دې کانتینر کې مرو، خدای ته توبې وباسئ، بله لاره نه لرو. په دې وخت کې به لا شل دقیقې تېرې نه وې، چې په خلکو سخته زیاته شوه. ډېرو سمدستي خپل اعصاب له لاسه ورکړل. ډېر یې له حرکته ولوېدل. ډېر راپکې سپین ږیري او تنکي ځوانان هم وو. ما د کانتینر وروستۍ دروازې د دوو څنډو پورې ځان نښلولی و. کانتینر چې به جمپ وخوړ، په درز کې به لږه شان هوا راننوتله. ما به هغه تنفس کړه او ځان ته به مې راکش کړه. خالي مې خپله پوزه او خوله په درز پورې نښلولې وه. هغسې خو ما هم څو ځلې ضعف وکړ، د تن جامه مې د بدن په خوله لمده قیشته شوې وه. په کانتینر کې د ننه خلکو باندې قیامت او د مرګ شېبې وې. غوږ ته مې د ځینو د ساه وتلو خرار راتلو.

د یوه زلمي هلک غږ مې تر غوږه شو، ویلې یوه هفته مخکې مې واده کړی دی. یوه وی: خدایه د طالبانو ستړه اوباسې، چې موږ یې داسې حال ته ورسولو، ما خو بل خواته مخ نه شو اړولی تورتم هم و، د کانتینر جمپ ته به په تمه وم، چې ساه راکاږم. د شاله لوري رابانديې فشار او سخته راغله. زیات خلک په کانتینر کې مړه شول، په ژوندو تنګسه راغله، خدازده چې څو تنه زما په شا راپرېوتل، خو ما د کانتینر وروستي کونج ته ځان کلک کړی و. د کانتینر د جمپ په هیله به مې خپله خوله او پوزه د کانتینر دروازې درز ته نیولې وه. ښه مې اورېدل، چې ډېرو ځانونو ته شهادت وایه، خلک خو د قبر سخته وایي، مګر دا سخته څو چنده زیاته وه. د هر انسان زړه اوبه کوي. څه اوازونه، څه چیغې، څه خرار، په خدای تعالی مې دې کسم وي، چې په دغسې حالت کې د بنیادم د ساه وتل ډېر ګران کار دی. کانتینر لا روان و، یو وخت مې غوږ ونیو، د خلکو هغه چیغې او نارې غلې شوې، یو نیم زګیروی او فریاد به مې غوږ ته راته. له مانه کور او بچي هرڅه هېرشوي وو، خالي د خپل مرګ او ژوند شېبې مې شمارلې. پخپلو خولو کې ډوب ناست وم. ناست څه خو اخر د مړو له پاسه د دروازې درز ته ناست وم. څو ځلي مې زړه درزا پیل کړه، پخپل ښي لاس به مې زړه وموښود، سترګې مې پټې کړې وې. تورتم و، بې له هغې مې څه نه یدل. یو وخت کانتینر ودرېد، پوه شوم، چې همدلته به مو له کانتینره ښکته کوي. د کانتینر په ودرېدو سره ګرمي لا پسې زیاته شوه، ډېره شېبه کانتینر ځای پرځای ولاړ و. زه نو زیاتي د مرګ تر سرحده رسېدلی وم. خپله خوله او پوزه مې د کانتینر درز کې نیولې وه، خو هوا تري نه راوتله. ډېره سختي رابانديې راغله، په دې وخت کې د کانتینر تر شا دروازه خلاصه شوه، ددروازې په خلاصېدو سره سم درب درب مځکې ته ځیني مړي ولوئیدل. یو نیم فریاد اورېدل کېده، توره شپه وه. ټوپک والا څو تنه کانتینر ته راغلل. په سترګو مې توره شپه وه، خو خړ خړ مې لیدل چې عسکر دي.

په دغه وخت کې مې خپلې سترګې ورو وغړولې، څو تنه په کانتینر کې لا نیم ژواندي پراته وو. کوم یوه به نری نری فریاد هم کاوه. ما خپل ځان نور ونه خوځاوه. ځان مې بیخي په مړو کې وګاڼه. بیا مې سترګې راپورته کړې او مې کاته چې ډېر اوږد د کانتینرو کاروان ولاړ دی. شاوخوا یې ډېر وسله واله ټوپک په لاس ماشه په ګوته ولاړ وو. په زړه کې مې د خطر زنګ ووهل شو، وړاندې مې چې وکتل، کلی او ابادي نه په سترګو کېدله، یوازې سپېره د لیلی دښته وه. د کاروان مخې ته شل متره وړاندې د خاورو ډېر ولاړې وې. په زړه کې مې ټکه شوه ما وی چې دې ټولو ته یې کنده وېستلې ده.

په شک کې شوم، زړه مې په ګوګل کې درزا پیل کړه، خو ورسره مې سمدستي د ځان د نجات او خلاصون لپاره چاره لټوله. څه چاره وه، خو ما ویل که کومه د خلاصون لاره ومومم. په دې کې څو بېلدوزرې د خاورو ډېرو ته نږدې ولاړې وې. شور او غامغال جوړ شو، له کانتینرو نه یې خلک راوغورزول، کوم وخت چې د کانتینرو مخې ته زموږ ټول کلي وال ډېر ډېری پراته و، په داسې حال کې چې په ما له پاسه دوه تنه پراته او زه هم د څو تنو د پاسه پروت وم، د سترګو لاندې مې یو نظر قدرې ولیدلو چې وسله وال راغلل. د مړو ډېر ته ې ورکتل. کوم یو به چې ژوندی و، ډز شي وبه یې ویشتو او مړ به یې کړو. همدغه شان وړاندې په ټول کتار کې به خدازده، چې څو تنه ژوندي پاتې وو. په ټولو یې ډزې وکړې او ویې وژل. بېلدوزرې چالان شوې، زه بیا پوه نه شوم، چې آ دومره خلک څه شول؟

یو وخت په بېلدوزر کې یې موږ څو تنه مړي پورته کړو. له ډاره مې سترګې بېرته کړې، ما وی بې له هغې دې وژني، یو ځل خو سترګې وغړوه. بیا مې په کراره سترګې وغړولې. بېلدوزرو د کانتینرو له مخې نه مړي پورته کول او په کندو کې یې اچول. د دښت لیلی په منځ کې یې کندې په بېلدوزرو وېستلې وې. ما چې دغه صحنه ولیده، زر مې خپلې سترګې بېرته پټې کړې. دومره وخت پکې نه و، بېلدوزر پورته کړو او د خاورو له ډېری اخوا ته یې وغورزولو. په غورزېدو کې مې ځان په رغړېدو وړاندې بوتلو سترګې مې غړولې. د کندې بل اړخ ته مې ځان ورساوه. تصادف له یوه پاڼ سره مخامخ ونښتم. سترګې مې بیا وغړولې، چې وخت هم د سهار خړنې په خوربېدو وه. د شفق غاړې روښانه وې، تندی مې له یوې تیږې سره ولګېد، دا وینې دا د ټپ ځای چې معلومېږي. ما وی ښه دا خو لوی پرهر دی، ښه نو بیا؟ بیا نو ځان مې د پاڼ بېخ ته غلی ونیو او پرې وتم. د سترګو لاندې مې کتل، چې نور څه کېږي. د کانتینرو مخې ته وړاندې د خړې عسکرې پلنګې درېشۍ کسان ولاړ وو. بېلدوزرو په مړو خاورې اړولې. په دې وخت کې په ما خاورې راتویې شوې. له وړندې داسې معلومېده، چې په ما د خاورو ځلی ولاړ وي. د لمر خاته پورې په دې دښته کې په مړو خاورې واوښتې. زما ځان هم نور په خاورو کې پټ شو. یوازې مې مخ او سترګې نیمایي په خاورو کې له ډوبېدو نه پاتې وې. بې له هغې راپکې څه نه و پاتې، ایله بېله مې ساه ایستله، پخپل ځای غلی پروت وم.

د خاورو جګ او لوړ پانډونه هوار شول، هغه دومره په زرګونو طالبان او د کلیو خلک د لیلی په دښته کې چوپ پرېوتل او خاورې پرې واوښتې.

یـو وخـت کـې مـې ځـان پـه خـاورو کـې وسـوزېد ، لمـر تـود شـو ، لـه دښـتې نـه سـور اور راخوت. غـوږ مې ونیـو او بیـا مـې ورو شـانې سترګې وغړولې. هـېڅ شـی مې پـه نظـر نـه راتلـو. نـه هغـه د کـانتینرو کـاروان و او نـه وسـله وال کـسان و. دښـته شـاړه پرتـه وه. ځـان مـې وخوځـاوه، لـه خـاورو نـه رابهـر شـوم، ځـان مـې وڅانـډه. لـه حرکتـه لوېـدلی وم، سـر مـې راپورتـه کـړ. د پـاڼ سرته وختم، شاوخوا مـې وکتـل، هېڅـوک نـه وو. پـه ډلـه ییـزو قبرونـو کـې چـې د پراخـوالي انـدازه یـې د سلو متـرو نـه زیاتـه وه، مـا یـوازې پـه یـو نظـر وکتـل. د قبرونـو اوږدوالـی زیـات و او سـور یـې راتـه نـه معلومېـده. پـه کـرار کـرار مـې حرکـت وکـړ او لـه هغـې ځایـه مـې ځـان راوو ېست. لـږ لـوړ ځـای تـه ورپورتـه شـوم، دا ځـل مـې ښـه پـام وکـړ، یـو ډلـه ییـز قبـر خونـه و ، څـو ډلـه ییـز قبرونـه کتـار یـو پـر بـل پـسې وېـستل شـوي و. پـه ډېـرو ځـایونو کـې پـه مـړو خـاورې نـه وې اوښـتې. ځینـې مـړي ټـول ښـکاره د ځینـو پـښې معلومېـدې او د چـا سـر لـه ورایـه ښـکارېده. پـه غېـر لـه مانـه بنـي بـشر د لیلیپـه دغـه خـوني دښـته کـې ژونـدی نـه و. لـږ وړانـدې مـې چـې وکتـل، هلتـه هـم پـه عـین شـکل سره د څـو ورځـو مخکـې همدغـه شـان نـور څـو ډلـه ییـز قبرونـه ښـکارېدل. لکـه لېـونی سـرک تـه راووتلـم، سـړک د زړو ډلـه ییـزو قبرونـو ترڅنګـه تېـر شـوی و. څـو ګامـه مخکـې لاړم، وړانـدې مـې ولیـدل، چـې کجیـران مرغـان پـه مـړو لګیـا وو. یـو بـد بـوی او تعفـن رابانـدګ راغـی، مـا وی ګنـې زړه مـې وچاودېـد. د خپـل کمـیس لمـن مـې پـوزې تـه ونیولـه او پـه منـډه لـه هغـه ځایـه رارووان شـوم. ګرمـي وه، د تنـدې نـه مـې ژبـه پـه خولـه کـې وچـه شـوې وه. د لـوږې او تنـدې مـې مـزل نـشو کـولای. د بلـې خوانـه راتـه د لیلـی دښـته سره تبـې شـوې وه. پـه سـړک کـې روان وم، لـه ځـان سره مـې سـوچ وکـړو مـا وی کـه پـه دې سـړک روان یـې او کـوم مـوټر درتـه مخـې تـه راشـي، وسـله وال پکـې وي، خـو خامخـا دې ژونـدی نـه پرېـږدي، راځـه لـه دې سـړکه پـه څنـګ شـه. پـه شـاړه شـاړه کـې بـه لـه دښـتې نـه ووځـې. بـس همـدا فیـصله مـې لـه ځانـه سره وکـړه، سـړک مـې پرېـښود او پـه دښـته کـې روان شـوم. ډېـر مـزل مـې وکـړو ، لمـر هـم پـوره تـود شـو. پـه بـدن کـې مـې هـېڅ طاقـت او شـیمه نـه وه، خـولې رابانـدې روانـې وې، سـترګې مـې تـورې تـورې کېـدې، پـه دښـته کـې هـم سـم نـشوم تـلای. وړانـدې ایلـه د سـترګو پـه لیـدو یـوه شـنه ونـه ښـکارېده. زمـا د تـګ پـه لـوري مخـامخ ډېـر لیـرې دغـه ونـه معلومېـده. تلمـه تلمـه ونـې تـه ورنـږدې شـوم. شـاته مـې چـې پـام وکـړ، ډلـه ییـز قبرونـه تقریبـاً اتـه کیلـومتره وړانـدې پـاتې شـول. کلـه بـه ولوېـدم او کلـه بـه راپورتـه شـوم، پـه لوڅو پوڅو ونې ته ورنږدې شوم.

د ونـې خواتـه ورغلـم، ومـې لیـدل چـې د ونـې سـیوري تـه دوه هوسـۍ ولاړې دي، پـاس د ونـې لـه یـو ښـاخ نـه مارتـاو شـوی و. پـه مـار چـې مـې سـترګې ولګېـدې، کـسم دی چـې د سـر غـوني مـې لـه ډاره رازیـګ شـو. د ونـې ترڅنګـه وړانـدې پـه یـوه تیـره تیـرهٔ کربـوړی پـروت واو لـه ګرمـۍ نـه یـې ژبـه راوېستلې وه او سر یې خوځاوه. زمـا پـه لیـدو سره هوسـۍ وتـښتېدلې ونـې تـه نـور نـزدې نـه ورغلـم. خپـل څادر مې لـه سره تـاو کـړ او پـه دښـته کـې بیـا رهي شـوم. کلـه غورزېـدم او کلـه پاڅېـدم، مخـې تـه بـه مـې چـې پـام وکـړ پـه غیـر د لیلـی دښـتې نـه بـل څـه نـه لیـدل کېـده. بیـا بـه چـې سـتړی شـوم، پـه لـوږه بـه ودرېـدم او شـاوخوا بـه مـې پـام وکـړ. نـه بـه ودانـۍ ښـکارېده او نـه کومـه ونـه. ماسپـښین شـو، کلمـې راپـورې لـه لـوږې نـه لګېـدلې وې. پـه خولـه او سـترګو مـې خـاورې پرتـې وې. پـوره یـو سـاعت مـې دښـته نـوره هـم ووهلـه. ډېـر لیـرې د سـترګو پـه ښـکار لـوړې ونـې ښـکاره شـوې. پـه زړه کـې لـږ خوشـاله شـوم، مـا وی چـې د لیلـی دښـته کـې رابانـدې شـپه رانـشي او همـد غې آبـادۍ تـه ووځـم. روان وم او پـه تلـو تلـو کـې خیـال او چـروت یـوورم. خپـل د کلي خلـک مـې رایـاد شـول، هـر یـو مـې پـه خیـال کـې یـو یـو لـه نظره تېراوه. هـر یـو چـې بـه مـې پـه فکـر کـې راغـی، زړه بـه مـې تـاو وکـړ. هغـه زمـا د تـرور زامـن، د کلـي اربـاب صـاحب، هغـه خیـال ګـل مامـا، میـراب ګـل سـر مـې رابانـدې وګرځېـد. سـترګې مـې تـورې تـورې شـوې، بـې خـده شـوم. ځـای پرځـای کـېښناستم، څـه ډېـر سـاعت ناسـت وم. بیـا مـې سـترګې وغړولـې لـه ځایـه راپورتـه شـوم. مـا وی چـې ناوختـه نـشي. مخـامخ مـې د سـترګو پـه نظر وړاندې د چنارونو ونې پـه نظر کې ونیولې او ورروان شوم.

دوه سـاعته مـزل مـې وکـړ، چـې جګـو د چنـار ونـو تـه ورنـزدې شـوم. د مـازدیګر سـیوری پـه کږېـدو و، چـې زه ونـو تـه ورسـېدم. د چنـارانو ګڼـې ونـې ولاړې وې، وړانـدې د چنـارانو شـاته کلـی ښـکاره شـو. زړه مـې ایلـه خوشـاله شـو، مـا وی اوس کـه مـړ هـم شـم، خلـک بـه مـې پـه آب و تـاب کـې ښـخ کـړي. پـه مـا کـې هېڅ شـیمه نـه وه پـاتې. حالـت مـې لکـه د لېـوني داسـې و. د یـوې ونـې سـټې تـه مـې کونـاټې ولګـاوه، زړه مـې و چـې ښـه پـوره دمـه وکـړم. د لیلـی دښـتې نـه راوتـل پـه دغـه حـال کـې څـه آسـانه کـار خـو نـه و. د چنـار د ونـې درونـد سـیوري تـه مـې سـاه واخیـستله، بـدن مـې سـوړ شـو، خولـه مـې وچـه شـوه. جـامې مـې پـه خـاورو او خولـو کـې لـت پت شوې وې.

خامخا رابانديږ خلکو د لېوني ګومان کاوه. ډېره شېبه وروسته د هلکانو ډله راغله، له وړاندې چې راروان وو، په ما کې يې سترګې ښخې کړې وې. ما هم هغوی ته کتل ښه يقين مې پرې راغی، چې د ترکمنو بچي دي، چې رانږدې شول، پخپلو کې يې خبرې کولې. ترکمني يې ويلې. له جامو نه هم اوچت ترکمن معلومېدل. خواته مې چې رانږدې شول، په تعجب او حېرانۍ سره يې ماته راکتل. ما هغوی ته کتل. هلکان پوه شول، چې کوم څوک دی، لېونی شوی دی. ما پرې سمدستي غږ وکړ:

او بچه ها ! بيائيد اينجا. هغوی چې دا خبره واورېده، منډه يې واخيسته او د کلي په لور وتښتېدل. په عمر ټول هلکان لس يوولس کلن به وو. په شور او زوږ سره په کلي ورننوتل. لږه شېبه پس مې پورته چنار ته پام وکړ، پاس په يوه ښاخ بانديږ کاکو ناست و، کوکو، کوکو ناري يې وهلې. له کلي نه د تيل پلو بوی مې په پوزه ولګېده. پوزه مې راښکده، چې تيل پلو بوی زيات شو.

په زړه کې مې کلي ته تمه پيدا شوه. زه لا په دې سوچ کې وم، چې له کلي نه درې څلور تنه سړي راغلل. دوه هلکان هم ورسره وو. لږ چې رانږدې شول، هلکانو ماته ګوته ونيوله او سړو ته يې زه ورپه ګوته کړم. هغوی راروان وو. ما ورته مخامخ ورکتل. هغوی هم ترکمن وو. راتلل، راتلل خوا ته مې رانږدې شول. ښکته پورته يې راته پام وکړ، يوه يې رانه سمدستي پوښتنه وکړه، ويلې: برادر تو کيستی؟ ما وی: يک انسان افغان و مسلمان ! بيا يې وويل: از کجا امدی؟ و اينجا چه ميکنی؟

ما وی: راه را غلط کردم، شب در يک دشت خدا تير کرديم و حالا به اينجا رسيديم. بسيار ګوشنه شديم، اګرشما چيزی نان بمن بدهيد ؟

هغوی رابانديږ پوه شول، چې دی پښتون دی. يوه بل يې وويل: راځه چې ځوو. هغوی زما جامو او حالت ته حيران او په فکر کې و، چې دا ولې په خاورو او دوړو کې لړلی دی؟.

ما وی چې د کوم طالب ګومان رابانديږ ونکړي، ورته مې وويل: برادران بالای من فکر طالب ماليب نکنيد ، من يک شخص مسلمان هستم و در شولګره بدوباش دارم. در نزديک بالاحصار جنګ درګرفت من در انجا کار داشتم. وقتيکه به خانه برميګشتم راه قريه ما از بست جنګ بند شده بود. از راه ديګری حرکت کردم، همان بود که راه را غلط کردم. از مابين يک دشت در ريګ و خاک خود را به اينجا کشيدم.

يوه سړي راته وويل: اوس نو څه غواړې؟

وروره وړی یم، تـه دا زمـا حـال نـه وینـې؟ لېـونی نـه یـم، روغ رمـټ انـسان یـم. مـا ورتـه دا خبرې په فارسي کې وکړې. مازديګر لمر په غړغړه و.

هغـوی لـومړی پخپلـو کـې سره وويـل: بېچـاره سړی دی، معلـومېږي، چـې طالـب مالـب نـه دی. پـه ترکمنـي ژبـه کـې يـې خپلـو کـې دا خبـره وکـړه. زه خـو پـرې پوهېـدم، ځکـه چـې مـا خـو زيـات وخـت د ترکمنـو سـره تېـر کـړی و. ويلـې راځـه وروره مـوږ سـره. هغـه چـې دا خبـره وکـړه، ډېـر زيـات خوشـاله شـوم. مـا وی ځـه خـواړه بـه راکـړي. لـومړی مـې خېټـې تـه څـه ورشـي، نـور بـه کېږي. زه ډېر سـتړی شـوی وم، پـه وجـود کـې مـې نـور څـه نـه و پـاتې. لـه ځايـه جګېـدای نـه شـوم. خـواري مـې وکـړه، خـو د چينـار لـه سـتې نـه پورتـه نـشوم. يـوه راتـه لاس راکـړ او لـه ځايـه يـې پورتـه کـړم. ګـوډ ګـوډ پـه لاره ورسـره رهـي شـوم. پـه کلـي چـې ورننوتـو، د تيـل پـلاو بـوی رابـانې راغـی. تلـو، تلـو چـې د کلـي مـنځ تـه ورسـېدو. وړانـدې يـوه لويـه کـلا د کلـي څنـګ تـه ښـکاره شـوه. شـاوخوا تـه يـې ونـې ولاړې وې. د کـلا و مخـې تـه باغچـه وه. دوه چينـاران يـې د کـلا دروازې تـه مخـامخ ولاړ و. يـوه لويـه صـوفه تـرې د لانـدې جـوړه وه او هـم د صـوفي مخـې تـه ودانـي ښـکلې برنـډه وه. د برنـډې شـاته لويـه خوشـخانه (حجـره) وه. پـه صـوفه کـې يـو سـپين ږيـری تـرکمن پـه څـوکۍ ناسـت و. تـسبې يـې اړولـې. مـوږ چـې ورغلـو، سـلام مـو واچـاوه. هغـه وعليکم ووايه.

سمد سـتي ورتـه يـوه تـن پخپلـه ترکمنـي ژبـه کـې وويـل: دا سـړی هلتـه د چينـار سـتې تـه ناسـت و. وايـې د مزارشـريف د شـولګرې د علاقـې يـم، لاره مـې غلطـه کـړې ده. پـه دښـته کـې راغلی يم، يوه شپه پرې تېره شوې ده. حالت يې دغسې دی، موږ له ځان سره راوست.

سـپين ږيـري ورتـه وويـل: ښـه مـو کـړي، لـومړی دا جـامې وربـدلې کـړئ او بيـا ورتـه ډوډۍ راوړئ. سړي چې دا خبره وکړه، په زړه کې مې ګوړې ماتولې.

تـشناب تـه يـې بـوتلم، ځـان مـې پرېمينځلـو، نـورې جـامې يـې راتـه راوړې. لـه غـسل نـه پـس مې په صوفه کې د مازديګر لمونځ وکړ، په ډېر مشکل سره مې لمونځ وکړ.

لـږه شـېبه وروسـته همغـه ځـوان، چـې د بـوډا سـره يـې خبـرې کـولې، ډوډۍ راتـه راوړه. مـا خـو دوه ورځـې ډوډۍ نـه وه خـوړلې، کلمـې راپـورې وچـې شـوې وې. لـومړی مـړی مـې پـه مـړی کـې نـه تېرېـده. د اوبـو ګـوټ سره مـې پـه زور زور سره مـړی لـږه آزاده شـوه. پـه کـرار کـرار مـې ډوډۍ وخـوړه. لـه ډوډۍ نـه وروسـته يـې چـای راوړ. د ماښـام لـه لمانځـه نـه وروسـته سـپين ږيـري سـړي او څـو تنـه نـور د کالـه خاونـدان کـور تـه ننوتـل. دوه تنـه مـزدوران غونـډې زلمـوټي پـه خوشـخانه کـې پـاتې شـول. هغـوی دواړو هـم ډوډۍ وخـوړه. خپـل ټـول کارونـه يـې سـم کـړل.

بیا زما خواته راغلل. یوه راته د چای شنه پیاله د شین چای نه راډکه کړه. مخامخ راته دواړه کښیناستل. زما بدن درد کاوه، سخت په عذاب وم.

دواړو ته مې وویل: وروره که په کور کې د هډوکو د درد ګولۍ لرئ، ماته یې راوړئ، ډېر په تکلیف یم. هغه یوه وویل: ښه ده زه به کور ته لاړ شم. ما له دا بل نه پوښتنه وکړه. ما وی وروره ته دلته ددې سپین ږیرې زوی یې که...؟

هغه وویل: نه زه یې مزدور یم، دغه بل یې هم مزدور دی. ما ترې بیا پوښتنه وکړ: دا څوک دی؟

وروره دا خو ددې کلي ارباب (ملک) دی. خدای ډېرې مځکې او مالداري ورکړې ده. یوازې پېنځه سوه خو آسان لري. دغه شان مېږې، غواګانې د هېڅ کمی یې نشته دی. کله کله ورکره دوستم هم راځي، مګر ډېر مهربانه سړی دی! هر کار او مشکل که ولري، دی درسره مرسته کولای شي. ما وی هېڅ مشکل نه لرم، خالي لاره مې غلطه کړې ده. په دغسې تکلیف اخته شوم. دی خواته زه کله نه یم راغلی، دا طرفونه راته ټول نااشنا دي. سبا ته چې کور ته تلم ارباب صاحب به راته یو خط راکړي، چې په لاره مې څوک په عذاب نه کړي. هغوی کې یوه وویل: دا خو آسان کار دی. ما لا بلې خبرې ته خوله جوړوله، چې ارباب صاحب راننوت. یو زلمی زوی او بل ورسره وړوکی هلک، چې لمسي یې کېده، راننوتل. مزدوران یې سپک سپک له ځایه پاڅېدل. زه هم احترام ته ورپورته شوم، ویلې کښېنه کښېنه بچی. پخپله ژبه کې یې وویل. سپین ږیری د نسوارو ډبلی راواخیست، یوه ټونګه نسوار یې خوله کې واچول. ماته یې د نسوارو وویل، ما وی ارباب صاحب زه نسوار نه کوم. لږه شېبه وروسته چای راوړل شولې، ارباپ چې نسوار وکړل، درې دقیقې وروسته یې د ژبې په سر داسې وویل: ښه وروره اوس وایه، چې ته څوک یې او د کوم ځای یې؟

ارباب صیب زما نوم شمس الدین دی، په خټه مومند یم. اصلي د جلال آباد د مومند درې یم. پخوا وخت کې مې مور په خره مزارشریف ته راوړی وم. پلار مې څه موده پخوا راغلی و، د شپېته او یا کالو خبره ده. په شولګره کې مې ځمکه او کور دی. هلته زموږ د ناقلینو لوی کلی دی. هغه بیا وویل:

رښتیا آبله ورځ خبر شوم، همدغه ستاسې په کلیو کې یې ستاسې او غانان په کانتینرونو کې وړي دي او ټول یې وژلي دي؟ ما سم له واره فکر وکړ، ځان مې په ناخبرو کې واچاوه. په تعجب کې مې ورته وویل: آخ ارباب صاحب دا څه وای، دا خبره رښتیا ده؟

یـوازې هغـه نـه، بلکـې ناسـتو کـسانو ټـول وویـل: هـو. هـو، خـود رښـتیا ده. اربـاب وویـل: لکـه چې تـه پـه کـور کـې نـه وې کـه څنګـه؟ نـه نـه ارباب صـاحب، زه لـه خپـل کلي نـه لیرې یـو بـل کلي تـه د یـوه خپلـوان کـره تللـی وم. د څـه نـه خبـر نـه یـم. هغـه بیـا وویـل: کـه پـه کـور کـې وې، نـو حتمـي بـه یـې تـه هـم وړی وا. ښـه شـوې چـې پـه کلـي کـې نـه وې. مـا هـم ورتـه پـه فارسـۍ کـې ځـواب ورکړ. ما وی: نی صاحب طالب نیستم، یک ادم دهقان کار هستم، مگر پشتون هستم !

هغـه وویـل: خـوب اسـت کـه طالـب نیـستی، پـشتون هـستی خیـر اسـت. دا خبـره یـې وکـړه. مـا بیـا پـه وارخطایۍ سره تـرې پوښـتنه وکـړه: اربـاب صـاحب زمـوږ کلیـوال چـې یـې وړي دي، ټول یې وژلي؟

هغـه لـږ غلـی و، بیـا یـې د خپګـان او تاسـف پـه حـال کـې وویـل: بلـی، تمـام شـان در دشـت لیلی کشته اند. نفر خودمان از قلعه بالاحصار دیروز امد.

بیـا یـې پـه ډک او غلـي اواز ویـول: امریکایهـا برایـشان اسـتاده بودنـد. در مـرګ تمـام طالبـان قـوای خـارجی کمـک کردنـد، مګـر کـشتن اوغـان هـای بـی ګنـاه را ظلـم کـرده اسـت. خـو ده خپلـې خبـرې نـورې پـسې زیـاتې کـړې. وې ویـل، چـې طالبـان خـو یـې مـړه کـړل، نـورو د کلیـو پـښتنو څـه ګنـاه درلـوده. دا خـو د خـدای او رسـول لاره نـه ده. دا ډېـره نـاروا ده، چـې دوی کـړې ده. غـاړه یـې تـازه کـړه او پـه جګ غـږ یـې وویـل: پـرون یـې پـه دا وړانـدې کلـي کـې چـې تقریبـاً شـپېته کـډې ستاسـې اوغانـان پکـې اوسـېږي، لـه هـر کـوره یـې کـوم چـې افغـان (اوغـان) دی ویـستلي دي او بیـولي یـې دي. معلومـدار چـې هغـوی هـم وژنـي. د خـدای قهـر دی ملـک کـې جـوړ شـوی دی. کلـه پـشتون تاجـک، اوزبـک، هـزاره او تـرکمن وژنـي او کلـه بیـا دوی پـښتانه وژنـي. خپـل منځـي جګـړې او مرګونـه خـو لا پرېـږده. لـه دې خبـرې سـره یـې جوخـت د چـای پیالـه پورتـه کـړه او ګـوټ یـې تـرې وکـړ. ماتـه یـې مخـامخ راوکتـل، وې ویـل اوس تـه ووایـه، څـه غـواړې، چېـرې ځـې، کلـي تـه ځـې او کـه بـل چېـرې. زه خـو درتـه د کلـي د تلـو مشوره نه درکوم، خو ته راته د خپل زړه اصلي مطلب ووایه.

مـا وی ارباب صیب ! زه بیـا هـم درتـه وایـم، چـې کومـه ګنـاه راکـې نـشته دی، طالـب نـه یـم. بـل کـوم مـشکل مـې مخـې تـه نـه دی پـروت، لـه مـا سـره د چـا څـه کـار دی. سبا بـه راسـاً خپـل کلـي کـور تـه ورځـو. اربـاب راتـه وویـل: بچـی سـاده کېـږه مـه، مـا خـو درتـه مخکـې خبـره وکـړه، سـتا کلیوالـو څـه ګنـاه درلـوده، تـه هـم د هغـې کلـي یـې. کلـه دې پرېـږدي، کـه کـولای شـې هـېڅ کلـي تـه مـه ځـه، کـوم بـل ځـای تـه لاړ شـه. دلتـه د پـښتنو شـپې نـورې ګرانـې دي. یـوازې دلتـه نـه، په کندوز او ټول قطغن زمین کې یې په پښتنو پسې دا ځل راخیستې ده.

نوره دې خپله خوښه !

زه حېران، هک پک پاتې شوم، چې څه وکړم؟ په دې وخت کې ارباب صیب تشناب ته لاړ. ما له ځانه سره فکر وکړ، چې ښه ربښتیا وایي که کلي ته ورشم، د کلي خلک خو زما په مخ کې له منځه لاړل، نو د کلي ښځو ته به زه څه وایم؟.

فیصله مې له ځان سره دا وکړه، چې په هر ترتیب سره کېږي ځان خپل پلارني پخواني کلي مومند درې ته ورسوم او له هغه ځایه بیا د خپلې کورنۍ د پاتې غړو غم وخورم. په زړه کې مې بس همدا فیصله وکړه. ما وی ددې ځای نه د وتلو به له ارباب صیب نه خط واخلم، چې لار کې مې ترکمن، اوزبک او دا نور ونه ځوروي.

زه لا په دې سوچ کې وم، چې ارباب صیب راغی، پخپل ځای کښېناست. ما وی ارباب صیب همدا ستا مشوره مې ومنله، د څو ورځو لپاره به ځان له کلي نه ګوښه کړم. کومې بلې خوا ته به ځان وباسم. که تاسې راته سبا ته په خیر سره یو لیک راکړئ، چې په لار کې مې څوک په تکلیف نه کړي. ارباب صیب وویل: ولې نه، زه به لیک درته ولیکم. له دې منطقې (سیمې) نه به روغ وځې، اخوا ته دې کار خپل دی. ما بیا ورغبرګه کړه، ارباب صیب اوس نو راته په هغه کلي کې ژوند کله خوند راکوي، نور کلیوال به مې نه وي او زه به کلي کې ګرځم راګرځم. دا خو زما پښتو او غېرت نه مني. که مال، عیال مې پکې تباه شي، بیا به دغه کلي ته ورنشم. د شپې تر ناوخته پورې ارباب راته د شمالي ولایتونو د جنګ سالارانو او قوماندانانو له لاسه سر وټکاوه. ماخستن تیر یې راته یو لیک ولیکلو. د ټولو کلیو او سیمې وسله والو ته یې زما په هکله ښه لیک پخپله ولیکلو او رایې کړو. وې ویل په لاره کې چا په تکلیفولې، دغه لیک ورښایه. څوک درته څه نشي ویلی. لیک یې راکړو او له ځایه پاڅېد. ماته یې وویل: سهار چې دې چای مای وڅښلو، بیا به له دې ځایه رخصت شې. ما وی ارباب صیب تا دې الله پاک ژوندی لري، سبا ته زه وختي لمانځه نه وروسته له دې ځایه حرکت کوم. ویلې ښه نو چې څنګ دې خوښه وي، همغسې وکړه. که سبا ته تللی وې، پرمخه دې ښه شه. لاسونه مې ورته ښکل کړل. مخه ښه یې راسره وکړه او لاړ دننه کورته ننوت.

ما د ارباب مزدورانو ته وویل: وروره سهار به راته لاره راوښیوئ. هغوی هر یوه وویل: هو سبا ته به وختي درته چای جوړې کړو، چای به وڅښې، بیا به دې لارې ته سیده کړو، ځې به.

د پرېوتلو ځای يې راته جوړ کړ، زه خو بې له هغې ستړی ستومانه او بې خوبه وم، پر بستره ولوېدم. تر سهاره مې پوره ښه خوب وکړ. سهار وختي يې راويښ کړم، لمونځ مې وکړ، هغوی راته مخې ته چای کېښودي. ما په چالاکۍ يوه پياله چای وڅښلې. هغوی ته مې وويل: وروره خدای مو ژوندي لره، اوس نو لاره راته وښايه، چې لمر رابانديې تود نشي.

د ارباب له حجرې نه راووتلم، يو تن راسره له کلي نه راووت. د يوې لارې په سر کې ودرېد. ويلې هغه وړاندې ونې چې ښکاري، هغه ځای پورې به په همدې لاره مخامخ ځې. کله چې ونو ته ورسېدې، يوه لار ښي پلو ته او بله مخامخ تللې ده. مخامخ لاره کلي ته ځي او ښي پلو لاره سړک ته وتلې ده. ته به همدغه ښي خوا ته لاره ونيسې. په سړک به ځې. که موټر درته پيدا شو، لاس به ورته ونيسې. هر چېرې چې تلې، ور وبه خېژې، ځه نو په مخه دې ښه. هغه رانه ستون شو او ما خپلو پښو ته زور ورکړ.

له يوه ساعت مزل نه پس ونو ته ورسېدم. په دوه لارې ودرېدم. د ښي لاس لارې ته وګرځېدم، لمر راوخوت، يوې ونې لاندې مې دمې لپاره خپل څادر تر کوناټې لاندې کړ. شاوخوا مې پام کاوه، مخامخ وړاندې کلی ښکارېده. په کلي کې ځای پر ځای لوګي ختل. د لږې دمې نه وروسته مې بيا لاره ونيوله او په مزل مې پيل وکړ. سړک کې کانې او تيږې دومره نه وې، خالي سپېرې خاورې وې. تر زنګانه پې سړی ښخېده. خپل څادر مې له سره تاو کړ، ما وی چې ګرمې مې ونه وهي. بندي کس لا په سړک نه ښکارېده. د چينارانو ونې رانه شاته وړاندې پاتې شوې. په يوه کڅ کې سړک تللی و، د سړک دواړو خواو ته پنبه ولاړه وه. ځای ځای د خټکيو پاليزونه هم تر سترګو کېدل. په ويالې او پټيو کې د چنګښو قور، قور مې تر غوږونو رارسېده. پوره ډېر مزل مې وکړ، له يو نيم ساعت مزل نه وروسته د موټر غرهاری شو. شاته مې کاته چې دوړې وې يو زوړ لوی واګون ګاډی راروان و. زه د سړک په غاړه ودرېدم، لاس مې ورته ونيو. ګاډی ودرېد، يو د اوږدو ويښتانو زلمي موټر چلاوه. غږ يې وکړو: ويلې چېرې ځې. ما وی موټر چېرته ځي، هغه وويل: د پلخمري خوا ته ځو. ما وی استازه! زه هم پلخمري ته ځم. کلينر غږ کړو ويلې راځه راوخېژه. موټر ته وروختم او په يوه څوکۍ کې کېنېناستم.

موټر روان شو او په دوړو کې بيخي پټ شو. د موټر ښيښې ماتې وې، دوړې او خاورې موټر ته راننوتې. د لږ مزل نه وروسته په دوړو او ګردونو کې پټ شوم. اوه اته تنه نور په موټر کې ناست وو. په څادرو کې يې ځانونه نغښتي وو.

هېڅ نه معلومېدل، چې څوک دي؟ لـه ډېر مـزل وهلـو نـه وروسـتـه مـوټر ودرېد. مـوټروان غـږ کـړ، ويلـې: تـالا شـي ده، د دوسـتـم دوی پوسـته ده. مـوټر تـه دوه تنـه راوختـل. هـر يـوه تـه بـه يې پـام کـاوه. پـه چـا چـې بـه يې شـک راغـی، اسـناد بـه يـې تـرې غوښـتل. لـه مـا يـې هـم اسـناد وغوښـتل. مـا ورتـه د اربـاب صيب ليـک ورکـړ مـا وی نـور اسـناد نـه لـرم. خدازده، چې پـه خط بـه پوهېـده او کـه نـه؟ سمدسـتي يـې ليـک بېرتـه راکـړ، مـوټروان ورتـه څـه پيسـې پـه لاس کـې کېښودې او لـه مـوټره ښـکته شـول. مـوټروان نـو بيـا پـښـه پـرې ټينګـه کـړه او پـه يـو رپ کـې د مـزار لـه سـاحې نـه واوښـت. ماسپـښين قـضـا و، چـې پلخمـري تـه ورسـېدو. هلتـه مـو دمـه وکـړه، لمونځونـه مـو هـم وکـړل او ډوډۍ خوړلـو نـه وروسـته د پلخمـري بـازار کـې وګرځېـدم. هلتـه هـم د خلکـو وضـعه راتـه مـړه غونـدې ښـکارېده. څـو تنـه دوکانـداران مـې پخـوا پېژنـدل. مـا وی راځـه ورچکـر شـه، ګونـدې وي. پـه بـازار کـې د هغـوی دوکـان پلـو روان شـوم، چـې نـژدې ورغلـم دوکانونـه مـې ورکتـل هغـه دوکانونـه او هغـه دوکانـداران مـې هـېڅ پـه نظـر رانغلو. دوه درې ځلي په بازار کې ښکته پورته لاړم، اشنا څوک مې نه کړو پيدا.

بـازار کـې د خلکـو ګڼـه ګونـه زياتـه وه، خـو څنګـه چې پخـوا و، هغـسې مـزه يې نـه وه. يـوه سماوار تـه وروګرځېـدم، مـا وی چـای مـای بـه وڅښم بيـا بـه د تلـو فيـصله لـه ځـان سـره کـوم. پـه سـماوار (هوټـل) کـې خلـک پـه تختـو ناسـت دي، څـوک چـای څـښي، څـو ډوډۍ خـوري، ځينـې پخپلـو کـې سـره خبـرې اتـرې کـوي. يـو نـيم پکـې چوپـه خولـه ناسـت و. زه پـه يـوه غـالۍ چـې د لرګيـو پـه تختـو غوړېـدلې وه، کـښېناستم، دېوالتـه تـه مـې ډډه ووهلـه. د هوټـل شـاګرد راتـه چـای راووړ، پـه شـنه پيالـه کـې مـې لـه چـاينکې چـای راواړاوه، چـې يـوه تـن مـې لـه شـانه پـه اوږه لاس کيـښود. زړه مـې کـش وخوېـده. مـا وی ځـه لکـه چـې بيـا يـې ونيـولې، مـا خپـل لاس دسـتي پخپـل جيـب کـې ومانـډه، مـا ويـل چـې د اربـاب صـيب کاغـذ ورښـکاره کـړم. مـا چې هغـه تـه کاغـذ ونيـو، ويلـې شـمس الـدين خانـه لکـه چـې ودې نـه پېژنـدم؟ وې خنـدل مـا وی بشير جان نه يې؟

ولـې نـه! بـشير يـم. ورجـګ شـوم، د غېـږې پرګنـډی مـې ورسـره وکـړه، خواتـه مـې کـښېناست، هغـه زمـوږ د کلـي و. دسـتي مـې تـرې پوښـتنه وکـړه: والکـه تـه څنګـه تـرې ژونـدی پاتې شوی يې؟

هغـه موسـکی شـو وې ويـل: دا تـه نـو څنګـه ژونـدی ګرځـې. مـوږ دواړه لـږ موسـکي غونـدې شو.

هغـه راباندې رادمخـه شـو ، خبـرې يـې پـه خـولې کـې ورو کـړې. شـاوخوا يـې وکتـل ، بيـا يـې راتـه وويـل: پـه دې ځـاى کـې زمـا او سـتا خبـرې نـه کېـږي ، دا د چـاى پيالـه دې وڅښـه چـې لاړ شـو. مـا زر تـوده پيالـه پـه دوه درې ګوټونـو کـې تـشـه کـړه. هغـې تـه مـې وويـل: تاتـه چـاى واچـوم ، هغـه وى نـه نـه. زه خـو دا دى اوس لـه کـوره راغلـم. تـه دلتـه... لـه کـوره. هـو دلتـه خـو زمـا د تـرور زوى دى. لـه پخـوا نـه پـه دې پلخمـري کـې اوسـېږي. د جمعيـت سـتر سـړى دى. د هغـوى کـره راغلـى يـم. تـه راځـه چـې ووځـو. لـه سـماوار نـه راووتلـو او پـه بـازار کـې د فـابريکې پـه لـور روان شـوو. پـه بـازار کـې ډېـر خلـک ښـکته پورتـه تلـل. يوځـاى تـه ورسـېدو هغـه رانـه مخکـې شو او زه ورپسې. تلو تلو له بازاره ووتلو. په يوه بله کوڅه کې وړاندې لاړو.

د خلکـو ګڼـه ګوڼـه کمـه شـوه. ده مـخ راسـتون کـړو ، ويلـې راځـه چـې د هغـې سـپيدارو سـيوري تـه کـښېنو او خپلـې خبـرې وکـړو. لـه مانـه دده تلوسـه زياتـه وه. مـا وى ډېـره ښـه ده. د سـپيدارو يـوې ګـورې ونـې لانـدې کـښېناستو ، ده سمدسـتي وويـل: دلتـه د تـرور پـه کـور کـې خلـک ډېـر دي ، زمـا او سـتا خبـرې هلتـه نـه کېـږي. همدلتـه بـه سـره ځانونـه وپوهـوو ، بيـا بـه لاړ شـو. مـا وى لـه دې نـه ښـه خبـره چېرتـه ده ! مـا زر لـه ځـان سـره فکـر وکـړ ، مـا وى لـومړى بـه همـدا خپله کيسه او معلومات راته بيان کړي ، بيا به زه ورته خپل کيسه وکړم.

ما وى ښه انډيواله کيسه کوه ، کلي ته څه حال دى؟

ده وې: دا خبره درنه ما غوښتل چې وپوښتم !

هغـه بيـا وړانـدې شـاوخوا پـام وکـړ ، پخپلـو برېتـو بـې لاس تېـر کـړ. وې ويـل: زه خـو دا دوه اونـۍ کېـږي ، چـې لـه کلـي راوتلـى يـم. دلتـه مـې د تـوړۍ کـره راغلـى يـم. هـره ورځ لـه دې ځـاى نـه ځـان خبـروم. پـه مزارشـريف کـې حـالات خـراب دي ، جګـړه ده. دو راتـه وايـي مـه ځـه ، حـالات بـه ښه شي بيا به ځې.

زه چـې لـه کـور او کلـي نـه راتلـم ، خـو کـراري وه. يـوازې پـه بالاحـصار کـې طالبـانو سـخت مقاومـت کـاوه ، جنـګ لا روان و. پـه کليـو کـې لا شـى مـى نـه و. کـه څنګـه؟ بيـا ماتـه ځـوک رښـتيا حـال نـه وايـي. ولـې د تـرور ټولـه کـورنۍ راتـه خپـه ښـکاري ، نـور نـه پـوهېږم. دده لـه خبـرو پـوه شـوم ، چـې دى د کلـي د حـالاتو نـه چـا نـه دى خبـر کـړى. پـه خبـرو کـې بـه يـې زمـا سـترګو تـه راکتـل. هغـه وويـل: ښـه نـو اوس تـه راتـه وايـه ، چـې څنګـه دلتـه راغلـې ، کور و کلي ته څه حال دى؟

زما مری وچه وه، دوه ځلې مې غاړه تازه کړه، اصلي خبرې مې خولې ته چېرته راتلې؟ لږه شېبه غلې پاتې شوم. د کلي په خلکو کې دده یو مشر ورور او دوه تنه د تره زامن د لیلی دښتې خپل ګوګل ته تېر کړي وو. هغه رابانديې شکمن شو، ویلې شمس الدین خانه ته خو د کلک ځیګر خاوند وې، څنګه غږکنده او غلی غلی کېږې؟

ما ځان ډېر تېر راتېر کړ، خو نه کېده، خبرې مې له خولې نه راوتې، ګچ او ګول شومه. هغه راته حېران، حېران کتل. همدا یې ویل: شمس الدین خانه هرڅه چې وي، وایه نو، اوس خو زموږ سر له راغلې ده.

زما ستوني ډک شو، سترګو نه مې د اوښکو باران راروان شو، یو ځل مې په زوره غږ کړو: څنګه یې ووایم؟ څه درته ووایم؟ د ویلو نه دي! زړه خو مې بې له هغې ډک و، نور ټینګ نه شوم، خپل سر مې په زنګنو ټیټ ونیو او ښه مې په زوره زوره وژړل. هغه هم له ما سره ژړا غبرګه کړه.

هغه کوښښ کاوه، چې تسلي راکړي او اصلي خبره بانديې ځان پوه کړي. زما خو زړه ډک و، د سپیدار لاندې مې ډک زړه تش کړ. له زنګنو مې سر راپورته کړ، خپلې سترګې مې له اوښکو وچې کړې، هغه راته بیا وویل: ماته رښتیا، رښتیا وایه، بې له هغې مې خراب خراب خوبونه لیدلي دي.

ما وی انډیوال ه صفا خبره دا ده، چې د کلي ټول خلک یې دوه ورځې مخکې د لیلي په دښته کې وژلي دي. د هغه د تندي ګونځې نورې هم څو کرښې زیاتې شوې. ویل آخ دا څه وایې؟ شمس الدینه له چانه دې اورېدلي دي که څنګه؟ ته نو څنګه..؟ ما وی چې زه هم پکې وم، نور هغه بیخي بې واره شو. دا نو څنګه چل شوی ته خو راته سمه اصلي خبره وکړه. له خپل ځایه ماته لږ راوړاندې شو، یو اوښکې او لاس یې رپېدل. په وارخطایۍ یې وویل: هله کیسه کوه!

زما زړه تش شوی و او سېله مې برابره شوه، له سره مې ورته کیسه راونیوله. هغه راته مخامخ ناست و، غوږ یې ایښی و، ما ورته ټکي په ټکي کیسه پیل کړه.

د هغه زړه وار نه کاوه، ویل بالاحصار ته یې زموږ د کوره څوک راوستي وو؟ ما وی ورور دې و او دوه د کاکا زامن دې. نو بیا څنګ چل وشو. د ورور او کاکا زامنو په اورېدو یې لاړې په مری کې ونښتې. ما چې خبره په کانتینر کې د بندېدو او د خلکو د سلګیو او چیغو نارو ته ورسوله، نور نو د هغه وضعه خرابه شوه. په ډېره یې رنې اوښکې راماتې شوې. په کانتینر کې مې تېر شوی حالت ورته تېر کړ. هغه نور پسې ژړا ونیو.

خپل د څادر پیڅکه یې مخ ته نیولې وه. ما چې ټوله کیسه ورته تېره کړه، هغه له خپله ځایه راپورته شو. غېږ یې ته راغاړې وت. دواړو په چیغو، چیغو وژړل. یو نیم څوک چې به په لاره تېرېده، موږ ته به یې راوکتل. ښه مو چې بیا سره زړه تش کړ. بیا هغه په نیولي غږ وویل: شمس الدین خانه راځه چې اوس د خاله کور ته لاړ شو، نورې خبرې به هلته کوو. موږ دواړه د هغې د ترور کور ته لاړو. د هغه د ترور کور له ښاره وتی په یوه کڅ کې یې کلا جوړه کړې وه، مخې ته یې لوی بڼ و. موږ د کلا مخې ته په دېره کې کښېناستو. یو تن په دېره کې د لرګیو پر تخت اوږد غزېدلی و، د خپلې چپنې لستونی یې په سترګو اچولی و. ښخ ویده و. دی ګړندی لاړ دننه کلا ته ورننوت. زه په سوپه کې د چینار لاندې په توشک کښېناستم.

د سوپې په یوه کونج کې د اوبو غټه چاټۍ ایښې وه. په جام کې مې اوبه ترې راواخیستې او په سر مې راواړولې. لږه شېبه وروسته هغه (پرویز) بېرته له کلا نه راووت او زما خوا ته راغی. ویلې کور کې یوازې تورسرې دي، نارینه ټول بازار ته وتلي دي. رښتیا تورچای څښې که شین؟ ما وی هر یو چې وي را یې وړه. ویلې دواړه شته. ما ویل شین چای راته راوړه. پرویز لږه شېبه کښېناست بیا پاڅېد. په تلو کې یې وویل: ترور مې رانه پوښتنه وکړه ویلې رنګ دې ځنګه زیړ دی، خپه غوندې ښکارې؟ ما وی نه نه توری څه خبره نشته دی. چای مې چې راوړو، بیا به دواړه وغږېږو، چې دوی خبر کړو که نه؟

هغه سمدستي د چای پتنوس سره راغی. دوه په دوه چای ته کښېناستو. ما چې ده ته کتل، ډېره خپه او ستومانه معلومېده. ما وی پرویز خانه د خدای کار دی اوس خو راغلي ده، له پېښې نه تېښته نشته دی. که زما اورې خو توری دې خبر کړه. دا ټول خبر کړه، ستا د ترور زوی خو بې له هغې له دې نورو سره لار لري، کلي ته به یې ولېږو، چې پوره حال احوال راته راوړي. هغه لومړی لږ په فکر کې شو لږ غلی پاتې شو. بیا یې وویل: ښه ده، چې ته ځنګه وایې، همغسې به وکړو. زما خو همدا نظر دی، چې دا ستا د ترور زوی به کلي ته ولېږو، که بې وکولای شول ستا او زما واړه به راولي. زه به درنه بیا د جلال آباد په نیت ځم او ته به دې دلته د ترور سره څه موده پاتې شې.

ما او ده دا خبرې ښې وغږنجولې په پای کې مو همدا سره غوټه کړه، چې ترورزی به زموږه کډې راولي. په همدې مو فیصله وکړه او د مازدیګر لمانځه ته پاڅېدو. د پاڅېدو په وخت کې هغه راته وویل: که دې خوښه وي، بېګا ته به ټول له تېر شوي جریانه خبر کړو.

ما وی څنګه چې ستا خوښه وي، همغسې به کړو.

د مازدیګر لمونځ مو وکړو، ماښام نزدې و، چې د پرویز د ترور زوی راغی. څلور تنه وسله وال ورپسې وو، ما چې ولیدل، زړه مې دربا پیل کړه. ما وی ګنې بیا راپسې دوستمیان راغلل. له ورایه یې پرویز ته وخندل په تورو برېتو کې یې سپین غاښونه وځلېدل. ویلې ترورزیه لکه چې ټوله ورځ دې په کور تېره کړه. په چټکو ګامونو زموږ خواته نزدې راغی. هغه ورته زه وروپېژندم، پوره د خوند روغبړ یې راسره وکړو.

خپل کلاشینکوف یې ونې ته ځوړند کړ، ویلې زه به اودس وکړم. ماښام دی، نورو ملګرو یې هم اودسونه وکړل. د ماښام په لمانځه ودرېدو، وروسته له لمانځه نه هغه په چالاکۍ سره کور ته ننوت. ورپسې پرویز لاړ. په راغلو کسانو کې یوه یې ګیس ته تیلی وواهه. ګېس یې بل کړو. ما له یوه نه پوښتنه وکړه: انډیواله تاسې همدلته اوسېږې؟

هغه وویل: هو موږ د قوماندان صیب کسان یوو، همده سره ګرځو. زموږ نوره قوه او مجاهد د زغالو (سکرو) دوکان سره پراته دي.

موږ لا په همدې خبرو کې و، چې پرویز دسترخوان څنګ کې نیولی و او راغی. دوه درې هلکانو ډوډۍ راوړه. قوماندان راووت. موږ ټول ګډ سره په دسترخوان کښیناستو. د ډوډۍ په جریان کې قوماندان وویل: ښښنه غواړم، هرڅه چې تیار وي، راسره خورئ به یې. زموږ داسې لالهانده وظیفه ده، یوه لحظه خوځېدای نشو. کله جګړه وي، کله هسې خبرې اترې، بیخي خوشې حالت دی. حېران ورته پاتې یو، چې نه یې کوو، دې وطن کې په غیر له دې نه شپې نه کېږي، چې کوو یې، دغسې حال دی. کله داسې هم شي چې په میاشتو کې کور ته نشو راتلای. ما چې هغه ته کتل، د خپلې قوماندانۍ نه خوښ ښکارېده. د ډوډۍ تر پایه یې د خپلې قوماندانۍ خبرې راته وکړې. له ډوډۍ وروسته چای راوړل شو، د چای په اخر کې پرویز هغه ته په غوږ کې څه وویل. ده سمدستي وویل: ښه، ډېره ښه ده. لږه شېبه وروسته قوماندان خپلو وسله والو ته وویل: والکه تاسې پام کوئ موږ د یوه ساعت لپاره دننه ننوزو. هغوی ټول وویل: ښه صیب. هر یوه خپل سلا راواخیستله او شاوخوا د څار لپاره یې تیاری ونیوه. پرویز وویل: شمس الدین خانه ترور مې وایي دی یو وار راننباسه، چې له نزدې نه ورسره وګورم. راځه دننه به لاړ شو. موږ درې واړه کلا ته ننوتلو. د کلا دروازې ته څېرمه یوه لویه هوجره وه، پکې کښیناستو. هلته هم ګېس لګېدلی و. لویه کوټه په قالینو پرش وه، لږه شېبه وروسته د قوماندان مور او لمسیان راغلل.

د قوماندان مور بوډۍ شوې وه، سترګې يې کمزورې وې، هوجرې ته راننوته. مور ورپاڅېدو، پرويز راته وويل: دا زما ترور ده. ما يې لاسونه ښکل کړل. هغې هم په سر ښکل کړم. د ګېس ترځنګ په توشکه کښېګناسته، درې تنه لمسيان او يوه لمسۍ يې ترڅنګه کښېناستل. پرويز وويل تورې دا سرې شمس الدين نومېږي، د مزار د شولګرې د لر کلي او سېدونکی دی. زموږ دوست دی، موږ سره په يوه کلي کې اوسېږي. له پخوا نه هلته زمکه لري. کلا يې زموږ د مځکې سره نږدې ده. ښه چم ګاونډ راشه درشه سره لرو. نن غرمه مې بازار کې وليد، د کور و کلي پوښتنه مې ترې وکړه، پوره احوال يې راته ووايه. نور نو دغه ستوني ډک ډک شو، زه پرې پوه شوم، چې خبرې ترې وراني شوې. زر مې ترې خبره ونيوله. يوازې هغه ماته د ژړا په حالت کې لاس ونيو، ويلې دی به درته خپله کيسه او د سترګو حال ووايي.

ما دوی ته زموږ د کلي حالت، د بالاحصار او د ليلي د دښتې کيسه راواخيسته، هغوی ټولو راته غوږ نيولی و. ما چې د خپلو کليوالو چيغې نارې او مرګ په کانتېنرو کې ناستو کسانو ته تر دغه ځايه کيسه راورسوله، بوډۍ په ژړا شوه. د خپل ټيکري پېڅکی يې سترګو ته ونيو، اوښکې يې روانې وې. د کانتينر حالات مې چې لږ نور ورته بيان کړل، پرويز او قوماندان دواړه په ژړا شول. د هغوی د خپلوانو مې هم ورته وويل. ما وی د پرويز ورور او دوه د کاکا زامن راسره په يوه کانتينر کې ناست وو.

تر پايه مې کيسه ورته تېره کړه، په کوټه کې ناست کسان ټول غمګين او په ژړا شول. د هر يوه له سترګو نه اوښکې روانې وې. قوماندان هم د جېب د ستمال سترګو ته نيولی و. زما حالت هم چندان نورمال نه و، تر ډېره وخته ټولو وژړل. بيا قوماندان وويل: ددې بې ناموسانو په دغه کار موږ نه يو خبر، خالي دومره خبر شو، چې ډېرې پښتانه يې په کانتينرو کې له خپلو کليو نه وړي دي او بلا طالبان يې هم په کانتينرو کې ژوندي اچولي، چې هغوی ټول مړه شوي دي. ولې د کليو د خلکو نه چا څه نه دي ويلي.

له دغه خبرې نه وروسته د هغه رنګ سور واوښت، لږه شېبه په فکر او چرت کې لاړ. پرويز ته موقع په لاس ورغله، وې ويل: تروزيه نورې خبرې پرېږده، سهار وختي به زموږ په وړو پسې ځې. د شمس الدين خان واړه او زما واړه به راولې. قوماندان شېرخان لومړۍ لږه شېبه غلی شو، بيا يې وويل: لکه چې دا ځل يې په پښتنو پسې راخيستې ده.

د طالبانو دې خدای ببخ اوباسي، چې په قدرت کې و، خو ملا او بنیادګر و، اوس چې نیول کېږي او وژل کېږي، پښتون دی. بیا لږ موسکی غوندې شو وې ویل: د الله کار دی، په دې ترکمنو او اوزبکو به چا سلام نه اچاوه، نن د بل په مټ او زور څه نه کوي؟ په غوسه کې یې ډېرې خبرې وکړې. بیا یې وویل: ستاسې فیصله همدا ده، چې ما شومان مو دلته راشي؟.

ما وی قوماندان صیب که ته زمونږ کلي ته تلای شې، ډېره به ښه شي. یو وار به د کلي احوال زده کړې. په یو ترتیب سره به زمونږ واړه تردې ځایه راورسوې. زه خپل وطن مومند درې ته ځم. ځمکه او مال به زمونږ دهقان ته که ژوندي و، وسپارې او که مړه وو، نو د هغه مېرمن او زامنو ته به یې ورتسلیم کړې او دا به ورته ووایې، څو ورځې وروسته به زما له خوا ورسره بیا نورې خبرې او ملاقات وشي.

قوماندان وویل: ډېره ښه ده، چې ستاسې څنګه خوښه وي، هغسې به وکړو. زه به سبا ته ستاسې کلي ته لاړ شم. همدا خبره یې وکړه او وې ویل: ناوخته دی، شپه تېره ده، راځئ، چې حجرې ته لاړ شو او تاسې لږ خوب وکړئ، نورې خبرې به سبا ته کوو. ولې زه درنه سهار وختې ځم.

# د وير کلی

موږ په حجره کې ډډې واچولې، تر ډېره موږ دواړو ته خوب نه راتلو. په همدې سوچ کې چې ایا ماشومان او کلی کور به څنګه وي؟ سهار وختي لمانځه ته جګ شولو، قوماندان د خپلو باډي ګارډانو سره وختي تللی و. موږ د هغه راتګ ته انتظار پاتې وو. دوه ورځې تېرې شوې، په دربیمه ورځ هغوی راروسېدل. زه او پرویز دواړه د ماسپښین په لمانځه ولاړ وو، چې وړاندې غږ شو ویلی راغلل. موږ لمونځ خلاص کړ، راپورته شوو.

یو هلک راغی، ویلې پلار مې خلک راوستل. موږ د کلا مخې ته ورغلو. کتل مو چې د بازار له خوا هغوی په کڅ کې راروان وو. موږ سمدستي مخې ته ورغلو. غوښتل مو چې پیټې ورسره راواخلو. کله چې د هغوی خوا ته ورغلو، ماشومانو زموږ په لور رامنډې کړې. زما اولادونه ماته راغاړې وتل او د پرویز ماشومان له هغه نه تاو شول. د کڅ په منځ کې زموږ مېرمنو په ژړا پیل وکړ. زما مېرمن ځکه ډېر ژړل، چې زه خو د هغیو نه د نورو کلیوالو سره یوځای له کوره راوتلی وم، نور کلیوال خو کور ته نه و ستانه شوي، ټول د کلي پاتې مېرمنې او واړه زاړه په دې پوه شوي وو، چې یا خو بندیان دي او یا یې وژلي دي. قوماندان شېر خان د خپلو کسانو سره زموږ کډې راوستې او د هغوی کلا ته ننوتل. په کلا کې شپږ کوټې وې، د ځای مشکل نه و. ښځې او ماشومان یې سره په کوټو کې ووېشل. موږ نارینه هوجرې ته لاړو. د قوماندان وسله وال څلور تنه له کلا بهر د وسلې سره په څار بوخت و. شېرخان وویل راځئ موږ درې واړه به په هوجره کې کښېنو. لږه شېبه وروسته چای راوړل شو. چای مو څښو چې قوماندان شېرخان خپلې خبرې داسې پیل کړې:

شمس الدین خانه ماما! له ژونده مې زړه تور شو، داسې کار د نړۍ په تاریخ کې نه دی شوی لکه ستاسې په کلي کې چې شوی دی. په هغه لوی کلي کې چې له خلکو ډک و هېڅ پاتې نه دي. نارینه یې وژل شوي او پاتې کسانو کډې کړي دي. په ټول کلي کې وګرځېدم، ویر دی او ژړاګانې دي. په هره کوڅه به چې ورتلم، په غېږ له ژړا مې نور څه نه اورېدل. توبه، توبه څه حال دی ستاسې په کلي کې؟ ستاسې په باب مې چاته څه نه دي ویلي، یوازې مې په پټه توګه ستاسې د مېرمنو سره رابطه پیدا کړه.

د نورو ماماګانو کورونو ته لاړ نشوم، ځکه چې که چېرته ستاسې کورونو ته تللای وای، رسوايي ګډېدله. دا واړه مې بیا په آسانه نشو راوستلای. دوی ته مې ځای وروښود، لومړی مې ورته ځان وروپېژاند او ستاسې د خولې سوال ځواب او نښې مې ورته وویلې. پس له هغې دوی ټول سرک ته راووتل. په دوو ګاډو کې مې کښېنول او رامې وستل. بې له هغې نه د کلي پاتې ښځې او ماشومان د تېښتې په حال کې وو. هر چا خپلې کډې بارولې. له ما سره په غېر له دې څلورو تنو نه، نور د تنظیم کسان راسره وو. دا ځینې خبرې خوند نه راکوي، چې په خوله یې یادې کړم. د یوه قوماندان سره مې شپه وه. هغه راته ټولې کیسې وکړې، هغه په ختمه ترکمن دی، مېرمن یې تاجکه ده. ولې ما سره له پخوا نه دوست دی. په غیر له تنظیم او جهاد نه ما او هغه ډېر کلونه سره یوځای په څو جبهو کې سره تېر کړي دي. یو له بله مو هېڅ پټ نه دي. ددې ماشومانو په رایستو کې راسره تر پایه مرسته وکړه. پېګانه آبل بېګاه مې ورسره شپه وه، د تېرو څو شپو تېرې شوې کیسې یې راته وکړې. هغه راته دا خبره هم وکړه:

ویلې په غېر له دغه کلي، یانې ستاسې کلي نه په غیر نورو کلیو کې هم همدغسې عملیات شوي دي، خو یره په دې کلي کې له حده زیات ظلم شوی دی. ما وی د ظالم بچې ته په دې عملیاتو کې وی. کسم یې راته وکړو. ویلې ښځه دې رابانده خور شي، چې زه قصدي پخپل کور کې وم. یوه هفته وظیفه کې نه وم، زه خبر وم، چې په دې کلیو بانده همدغسې عملیات کوي. زما کسانو به راته راپور راوړو. وخت په وخت به خبرېدمه، غم او غوسه مې پسې زیاتېدله، ولې چاره څه وه؟.

دا لا څه کوې، تاته یو بل راز هم وایم، ځکه چې یار مې یې. داسې خبره مې اورېدلې ده، چې په دې سیمه کې د تللو پښتنو نه ځمکې اخلي او کډه کولو ته یې مجبوروي. خو پام دې وي چې زما دا خبره بل چاته ونه کړې. دا یې راته وویل او زه ترېنه بیا رابیل شوم. دلته په بغلان او پلخمري کې اکثره پښتانه دي. که زه او یا ما غوندې څو نور د دوی سره سر ونه خوزوو (د شمالي ټلوالې) سره، دا پاتې پښتانه هم بې ابې او سپکاوي ته رسېږي. په زړه مو کله قبلېږي، هغه داسې ورته ډېرې خبرې ګوکړې. بیا یې وویل پرویز ماما دوی د ټولې کورنۍ احوال مې واخیست. لکه څنګه چې شمس الدین خان ورور پخپلو سترګو هرڅه لیدلي کتلي دي، هماغسې شوي دي، خو خلک لا په کلي کې د اصلي واقعې او پېښې نه سم خبر نه دي. زیات یې پوه دی، چې د کلي ټول خلک یې د لیلی په دښته کې وژلي دي.

زه پــه همـدې سـبب سـره کلـي تـه دننـه ورننـوتم نـه. لـه بهـره مـې ټـول معلومـات واخيـست. کلــی ورځ پــه ورځ تــشېږي، کــډې تــرې روانــې دي، مــا هــم چــالاکي کولــه، چــې ژر ستاســې ماشومان راوباسم. زما له لاسه همدومره کېدل، نور نو ستاسې خپله خوښه ده !.

د خبرو وار مارته راورسګېد:

وروره ! تـا دې خـدای ژونـدی لـري، ډېـر لـوی احـسان دې پـه مـا واړاوه، ترڅـو ژونـدی يـم، دا مرسـته او احـسان بـه دې هېـر نـه کـړم. زمـا بـه لـه خدايـه سـمه وه ، ګنـې پـه دومـره اسـانۍ سـره دا کـار نـه کېـده. لـه ښـه مرغـه، چـې پرويـز مـې پـه بـازار کـې وليـد او دلتـه يـې راوسـتم، کـه نـه خدازده په کومو ځايونو به ګرزېدئ؟.

قومانـدان صـاحب زه داسـې فکـر کـوم، چـې دا خلـک پـښتانه پـه ترکـستان زمـين بانـدې نـور نـه پرېـږدي. د طالبـانو دې کـور وران شـي، ډېـر زيـات يـې قهرولـي دي. طالـب او ناطالـب نـه ګـوري، خـو چـې پـښتو وايـي، بـې مرګـه يـې نـه پرېـږدي. د ترکمنـو ، اوزبکـو او هـزاره و سـره دا تاجــک ګفتــه ټــول د پــښتون پــه بربــادۍ او نــابودۍ پــسې يــې دا ځــل بــډې وهلــي دي.

قوماندان شېر خان وويل: هو ، هو همدغسې ده، د ټولو يوه خبره ده.

پرويز له د خبرو وار ورغی، ده وويل:

اوس خـو مـو سـر لـه راغلـې ده، د پـښتې نـه تېښته نشته دی. ولـې پښتانه خو بـلا وهلـي نـه دي؟ پــه اتفــاق دې ټــول پــښتانه پــه يــو اواز ســه خــارجي راغلــو قــواوو تــه (امريکايــانو تــه) ووايــي، چــې دا وطــن د پــښتنو د اکثريــت خــاوره ده. لــه پخــوا زمــانې نــه راپــدې خــوا يــې د خــارجي يرغلګــرو نــه دا خپلــه خــاوره ســاتلې ده. دا اوس دا خلــک د امريکــايي او انګليــسي عــسکرو او قوتونـو پـه زور پـښتانه وژنـي، لـه خپلـې ځمکـې يـې باسـي او د القاعـده او طالـب پـه نـوم يـې خارجيـانو تـه پـه ګوتـه کـوي. دا عمـل غېـر انـساني او غېـر افغـاني عمـل دی. دا خارجي قواوې بايد پوه کړی شي. په کرار کښېناستو خو نه کېږي.

قومانـدان د پرويـز خبـره ونيولـه، ويلـې ماماجانـه ! کـه رښـتيا راپانـدې وايـې، پـه کـوم پــښتون دا اواز جګــوې؟ پــه دا پينځــه ويــشتو کــالو کــې دې پــښتون پاچــاهي نــه کولــه، خــو اصــلاً هغــوی لــه ســره پــښتانه، نــه وو. د پــردو غلامــان وو. ســبا تــه همــدا خبــره ده او بيــا هــم همدغه حال دی.

د پــښتنو کيــسه دې مفتــه ده، د ځــان، مــال او بچــو غــم وخــورئ، پــښتانه پرېــږده، چــې تشې لاپې شاپې وکړي. هغه پخواني پښتانه، نه دي پاتې.

ما بیا د خبرو وار ونیو، ما وې: شېر خان قوماندان صیب ستا د خبرو سره زه موافق یم، خو یوازې دومره ویلی شم، چې داسې هم نه ده، چې دوی څنګه فکر کړی دی. په افغانستان کې ټولو سیاسي ډلو ټپلو خپل وار تېر کړو، هر چا د افغانستان خلکو ته خپلې نادودې پرېښودې. نن دې شېر پنجشېر او شمالي ټلواله هم خپل وار تېر کړي. ولې دا ناروا چې دوی رااخیستې ده، هېچا په تاریخ کې داسې نه دي کړي. لکه چې دوی وکړل. په افغانانو هېڅکله د چا بدل چاته نه دی پاتې شوی، ترڅو به داسې وي. زموږ غټ عېب او قصور دا دی، چې سره په اتفاق نه یو. پخوا هم همدا خلک وو، دوی له مونږه څل وهلی نشو، خو له دا ځینو پښتنو له لاسه په موږه داسې شپې ورځې راغلې دي. ټولې نړۍ ته یې لکه د ببو غونډې وروپېژندلو. ته والله د یوه ملک پاچاهي چې طالب ته پاتې شي، نو د داسې ملک به څه حېثیت وي؟ قوماندان صیب، چې رښتیا رابانډې وایې، دا کارونه چې دوی وکړل، د اسلام په تاریخ کې کله داسې شوې دي؟.

مطلب د پښتون شمله یې راټیټه کړه. طالبان خو د بل چا په مرسته د څو تنو لوړ پوړي خرڅ شوي غلامان طالبان وو، چې پخپله مخه ولاړل. په نوم طالب خو یې ټول پښتانه دل کړل. اوس نو بله چاره نشته دی، هرڅه چې دي په ځان به یې تېروو. پرویز رانه خبره ونیوله. ویلې شمس الدین خانه وروره ! راځه چې اوس د دې خپلو ماشومانو او د خپل سر غم وخورو. شپه په وتو ده، اوس به خپلې خبرې وکړو. ته څه تصمیم لرې، چې څنګه وکړې؟.

ما وی زه خو وروره تاسې ته صفا خبره کوم او هغه دا چې زه چې ژوندی یم، نور به خپل کلي ته لاړ نشم، ځکه چې په کلي کې څوک نه دي پاتې. اوس نو هلته ژوند خوند نه راکوي. ځمکه او کلا، مالونه مې دهقان ته پاتې دي. زړه مې دی څه موده وروسته دغه ځمکه کلا هرڅه خرڅ کړم، څو خپل وطن ته لاړ شم. پاتې ژوند د خپل پلار نیکه په پخواني کلي تېرکړم. سبا ته به له خیره د کابل په لور وخوځېږو. رښتیا قوماندان صیب ! د سالنګ لاره څنګه ده، تګ راتګ پرې کېږي؟ هغه وی: هو تر پرونه خو د سالنګ لاره خلاصه وه، چې خلاصه وي ښه ده. موږ به سهار ته په خیر سره له تاسې نه رخصت شو. قوماندان شېرخان وویل: ماما ولې یو څو شپې خو به مو راسره تېرې کړې وای. ما وی: تاسې دې الله ژوندي لري، که ژوند باقي وو، زه یو ځل بیا څه موده پس بېرته دلته راځمه.

پرویـز وویـل: سـمه ده تاسـې دې خـدای پـه خیـر سـره خپـل وطـن تـه ورسـوي، مـوږ بـه تـر هغـې دلتـه یـو نـو ترڅـو چـې وروسـته نـور څـه پېـښېږي. نـور نـو شـپه زیـاتې پـه وتـو وه، قومانـدان وویـل: اوس بـه ویـده شـو، سـهار بـه لـه خیـره بیـا څنګـه چـې ستاسـې خوښـه وه، هغسې به وکړو.

شـپه تېـره شـوه، سـبا شـو. وختـي لمانځـه تـه پاڅېـدو، وروسـته بیـا چـای وڅـښل شـوې. قومانـدان شـېرخان وختـي یـو تـن پـه مـوټر پـسګي بـازار تـه لېږلـی و. لـږه شـېبه وروسـته هغـه راغـی. ویلـې مـوټر مـو دربـس تـر کابلـه نیـولی دی. مـوټروان ویلـی سـورلۍ دې راولـه، چـې حرکـت وکـړو. د سـالنګ لاره نامعلومـه غونـډې ده، څـومره چـې پـه وخـت لاړ شـو، ښـه ده. مـا خپلـې مېرمنـې تـه وویـل واړه درسـره سـنبال کـړه، چـې ځـو پـه خیـر. پـه دې وخـت کـې قومانـدان شـېرخان او پرویـز دواړو جېـب تـه لاس کـړو، پیـسې یـې راوویـستې او ماتـه یـې ونیـولې. شـېرخان پیـسې زمـا جېـب تـه راختـا کـړې، مـا بېرتـه ورکـړې. ویلـې وروره ! تـه پـه سـفر ځـې، ماشـومان درسـره دي، چېـرې بنـد پـاتې نـشې. مـا وی کـور دې ودان. زمـا مېرمنـې لـه کـوره ځـان سـره پـوره پیـسې راوړې وې. ګومـان کـوم، چـې خـدای بـه مـو بګـد نـه پـاتې کـوي. د هغـه مـور او ماشـومان، مېـرمن یـې او مـوږ ټـول سـره پـه یـوه ځـای لاسـونه پورتـه کـړل، دوعـا مـو وکـړه. بیـا مـا هغـوی تـه وویـل: ستاسـې ښـېګڼې بـه نـه هېـروم. تاسـې دې الله ژونـدي لـري. قومانـدان صیب، پرویـز خانـه څـو ورځـې وروسـته بـه زمـوږ د کـور، کلـي، ځمکـې او زمـوږ پـه دهقـان بـه درسـره ټینګـه وکـړئ، چـې پـه هرڅـه ورسـره پـام وکـړي. زه پـه خیـر سـره بېرتـه زر راګـرځم او کـه دې وکـولای شـوای، زمـوږ دهقـان تـه د کـوم بـاوري سـړي پـه خـولې ځـواب ورولېـږه. ورتـــه ووایـــه شـــمس الـــدین روغ جـــوړ دی، خپـــل واړه یـــې د څـــو ورځـــو لپـــاره مومنـدرې تـه بیـولي دي. څـه مـوده وروسـته بېرتـه راځـي. زمـا خـو اصـلي خبـره ستاسـې سـره ده، چې زه بېرته که ژوندی وم، خپل کلي ته به دوباره ور ونه ګرځم.

زه بـه بیـا پـه کلـي څنګـه سـترګې ولګـوم؟ ورونـه، خپلـوان او کلیـوال بـه نـه وي او زه بـه یـوازې پـه کلـي کـې ژونـدی ګـرځم. نـه، نـه دا نـشم کـولی. پرېـږده، چـې زه هـم خپلـو کلیوالـو او پـښتنو تـه خپلـه پـښتو او ننـګ وروښـیم. پرویـز جانـه کـه چېرتـه کلـي تـه لاړې، پـه ټـول کلـي او کانړو بوټو باندې به زما سلام وایې.

اوس نو د خدای په امان، د کور له ټولو غړیو نه مو مخه ښه راواخیستله. یوازې شېر خان او پرویز راسره تر موټره ولاړل. د پلخمري ښار د کابل موټر تم ځای ته ورسېدو، زموږ موټر تیار و، ماشومان موټر ته وروختل. ما له قوماندان او پرویز نه خدای په اماني واخسیتله. دوی لا ولاړ وو، چې موټر روان شو. هغوی راته لاسونه خوځول، چې زموږ موټر په دوړو کې راپناه شو.

# پای

# ژوندۍ پېښه

ادب په هره ټولنه کې د اصلاح او سموڼې لپاره ډېر مهم رول لوبولی دی، په هره ټولنه کې څه ناخه نیمګړتیاوې او ناانصافۍ موجودې وي، چې د اصلاح او رغونې لپاره یې شاعران، لیکوالان او ادیبان د خپل قلم په ذریعه ډېر کار کوي.

وایي چې ښه قیصه، ناول، افسانه یا ډرامه هغه وي، چې لوستونکي پل په پل د ځان سره بیايي، تر هغې چې د قیصې د پای ټکي ته نه وي رسېدلی.

د افغانستان تېر پېنځه ویشت کلن ناورین او غمیزې هم ډېرې بدمرغه او دردونکې قیصې په خپله سینه کې ځای کړې دي، په دغه غمېزه کې په بې وزله افغانانو او بیا په خاصه توګه په پښتنو ډېر ناوړه او بې دریغه ظلمونه شوي دي. د ډله ایزو وژنو قرباني هم اکثر پښتانه دي، چې ښه مثالونه یې د کونړ د کرهالي او د لیلی د دښتې ډله ایزې ټول وژنې دي، پښتانه تل کله د ملا او طالب په نوم، کله د مجاهد او اشرار په نوم، کله د کمونست (خلقي او پرچمي) په نوم زوربدلي دي او د ظلم د وخت د هر دور چارواکو او ټوپک سالارانو په مختلفو پلمو (چلونو) په دغه بې ګناه او بې وزله خلکو خپله خواه یخه کړې ده.

د دغه ظلمونو او ډله ایزو وژنو یوه بدمرغه پېښه د "لیلی د دښتې" ده، چې د هېواد د شمال د دغه ناوړه پېښې انځور محمد اجان یار په دې کتاب (د لیلی دښته، د سترګو لیدلی حال) قیصه کې په ډېر ساده او روانه لهجه په مختلفو کردارونو کې رانغښتې او په داسې انداز کې یې تمثیل کړې، چې لوستونکي به د کتاب د لوستلو په وخت حتماً دا فکر او سوچ کوي، چې محمد اجان یار د دغه پېښې د خپلو سترګو شاهد دی.

د پښتونخوا د پوهنې د بېره د تېرو څو کلونو راهیسې هڅه او زیار کوي، چې د پښتنو لیکوالانو سره د کتابونو په چاپ او سمبالښت کې مرسته وکړي، ترڅو د پښتو د ادب زار لمن د هر راز ادبي رنګینیو څخه ډکه شي، چې په دې سلسله کې یې په زیات شمېر کې کتابونه د مینه والو لاسونو ته رسولي دي.

د ښاغلي محمد اجان یار دا دوهم کتاب دی، چې د پښتونخوا د پوهنې د بېرې په زیار خوربېږي، له دې نه وړاندې د یار صیب د یو ښکلي ناول "څانګه" د خپرېدو ویاړ هم د پوهنې د بېرې په برخه شوی، چې هغه ناول "څانګه" هم د یوې ژوندۍ پېښې او یوې پښتنې پېغلې د ژوند داستان و، چې د لوستونکو د پام وړ ګرځېدلی دی.

(د لیلی دښته د ستړګو لیدلی حال) هم د افغانستان د غمیزې یو تاریخي او حقیقي قیصه ده، چې محمد اجان یار په ښکلې او ښه توګه انځور کړې ده. په دې قیصه کې د اسې کردارونو ته ځای ورکړل شوی، چې د پېښې د تل (بېخ) عکاسي کوي، د مظلومانو ژړا او فریاد د انساني حقونو د علمبردارانو غوږونو ته رسوي او د ټوپک سالارانو او ظالمانو د تورو مخونو څخه پرده پورته کوي، کوم چې د ژبې، قوم او نسل په نوم یې په پښتنو هر راز وحشیانه او نه بخښونکي ظلمونه کړي دي.

د لیلی دښتې د ډله ایزو وژنې خبرونه او راپورونه خو موږ د ورځپاڼو، مجلو، خبري رسنیو او راډیوګانو په وسیله اورېدلي و، مګر د دغه بې رحمانه ټول وژنې اصلي منظر زما په خیال تر اوسه په کتابي شکل نه دی راغلی. دا د محمد اجان یار کمال دی، چې د دغسې دردونکو پېښو څخه یې په ډېر هنر پرده پورته کړې ده.

تېر کال زما دیار صیب سره په جرمني کې لیدل کتل وشو، ما د هغه ځینې شعري ټولګې هم لوستې وې، هغه زما څخه د دغه نورو کتابونو د چاپ په هکله د مرستې غوښتنه وکړه، نو هماغه و چې د "څانګه" ناول څخه وروسته دا دوهم کتاب هم چاپ شو. زما په اند (فکر) یار صیب په شعر، ناول او څېړنیزو لیکنو پوره پوره ازمېښت کړی دی. د هغې ټولې لیکنې د قدر وړ دي، خو د دې وروستیو کتابونو د چاپ څخه دا په ډاګه کېږي، چې په قیصه او ناول لیکلو کې یار صیب پوره تجربه او لاس بری لري او دا ځکه چې هغه د ولس په ژبه په ساده او روانه لهجه د قیصې شروع او انجام په ډېر ښه توګه تمثیلوي. دا به په دې مانا نه وي، چې نورې لیکنې یې په زړه پورې نه دي، خو کوم خوند او مزه چې د هغې په نثري لیکنو خصوصاً په قیصه او ناول کې دی د یادونې وړ بولم، ځکه د دغه ټولې قیصې او پېښې د افغانستان د اوږدې غمیزې سره جوخت تړون لري او باالکل حقیقي او یا حقیقت ته نژدې دي. که څه هم د محمد اجان یار په دې کتاب کې به ځینې تېروتنې او نیمګړتیاوې هم وي او په ځینو ځایونو کې به د مبالغې څخه هم کار اخیستل شوی وي، خو په حقیقت کې قیصې ته د رنګ او ښکلا ورکولو لپاره دا هرڅه ضروري وي. زه د پښتو ژبې د خدمت په دغه سفر کې محمد اجان یار ته لا ډېر بریالیتوبونه غواړم.


عبدالبصیر بېدار

د پښتونخوا د پوهنې د دېرې مرستیال

پېښور، پښتونخوا